راتلو پهٔ انتظار شپې ورځې تیروي خپل هیواد ته پهٔ اطمینان او ډاډ راستانهٔ شي او حتی هغه زیات افغانان بهٔ چې پهٔ اروپا، امریکا او استرلیا کښې مهاجر دي او له مادي اړخه سنهٔ ژوند لري، د هیواد د خدمت پهٔ منظور بیرته هیواد ته راشي او یو ځل بیا بهٔ خوارهٔ وارهٔ افغانان راټول شي. له بلې خوا بهٔ د نړۍ هغه هیوادونه چې د افغانستان د بیا ابادولو پهٔ کار کښې یې د نقدي او جنسي مرستو وعدې کړې مطمئن شي او له خپلو ژمنو سره سم بهٔ هیواد ته مرستې راولیږي او دعبوري بې طرفه حکومت تر څارنې لاندې بهٔ زموږ د ګران وطن د بیا آبادولو کار پیل شي.

پهٔ دې ترتیب د ډاډمن امنیت پهٔ راتلو سره به له یوې خوا خلك آزاد تنفس وکړای شي او دخپلې رایې او فکر دڅرګندولو زمینه بهٔ ورته برابره شي، له بلې خوا بهٔ وسله والې ډلې د زور پر ځای له ملت سره د منطق له لارې مخامخ شي، له اولس سره بهٔ مفاهمه ولري او بیا بهٔ د ملي منافعو پهٔ رڼا کښې د راتلونکي سیاسي ژوند د پرمخ بیولو له پاره لاره هواروي او دوطن پهٔ بیا ودانۍ کښې بهٔ داسې برخه اخلي لکه د دښمن پهٔ ماتولو او شړلو کښې یې چې اخیستې وه.

١٠ همدا د ډاډمن امنیت ګام بهٔ ددې زمینه برابره کړي چې ملت یو ځل بیا سترګې وغړوي او د نړیوالو بشري حقوقو پهٔ رڼا کښې دخپل سیاسي برخلیك د ټاکلو له پاره اقدام وکړي.

## څلورم ګام

# سراسري سرشميرنه

په افغانستان کښې به بې طرفه حکومت د ډاډمن امنيت تر ټينګيدو وروسته په هيواد کښې د سراسري سرشميرنې له پاره اقدام کوي او دا کار ځکه له ضروري ګامونو څخه دی چې:

**لومړی:** تر اوسه په افغانستان کښې يوه واقعي سرشميرنه نه ده شوې او څه احصائيې چې شته ټولې تقريبي، نسبي او اټکلي دي.

**دوهم:** د افغانستان د هر ارخيزې بيا رغونې په لړ کښې د هيواد د سياسي، اقتصادي، فرهنګي او اجتماعي اډانې بيا ودانول باوري احصائيو ته اړه لري او کله داسې ونه شي نو دافغاني ټولنې د ټولو سيمو او نژادونو دعادلانه اومساوي پرمختګ زمينه به برابره نه کړای شو.

**دريم:** تر ټولو خطرناکه خبره داده چې د باوري احصائيو د نشتوالي له امله يو شمير کورنيو مخربينو او بيرونيو دښمنانو ته ددې زمينه برابره شوې ده چې زموږ د واحد، نه بيليدونکي او يو موټي تاريخي ملت د بيلا بيلو قومونو او د بيلا بيلو مذهبونو د پيروانو تر منځ درزونه واچوي او له دې لارې د افغانستان د بربادۍ او د سياسي موجوديت دله منځه وړلو له پاره کار وکړي، د نفوسو د تناسب د نماينده ګۍ په نامه يوه ډله او يا ديوه نژاد پيروان راولاړ شي او د سياسي سيادت د استحقاق دعوی وکړي، يا له ګډ وډۍ نه په استفادي سره نژادي او مذهبي ګروپونه دځان له پاره

١١

پهٔ واک کښې دبرخې اخيستلو پهٔ غرض فيصدي وټاکي او دکلاشينکوف پهٔ زور يې تحقق وغواړي. پهٔ دې برخه کښې تر ټولو خطرناك هغه تشبثونه دي چې ځيني هغه هيوادونه يې کوي چې د افغانستان تاريخي دښمنان دي خو اوس د دوستۍ پهٔ جامه کښې موږ ته احصائيې خلق کوي او زموږ پهٔ هيواد او ملت کښې د داسې درزونو د رامنځ ته کولو پهٔ هڅه کښې دي چې زموږ د هيواد تاريخي موجوديت، ملي خپلواکي، ملي ګټې او ملي حيثيت متضرر کړي. زهٔ دداسې هيوادونو د دښمنانه هلوځلو د ښودلو له پاره يوه وړه نمونه يادول غواړم:

پهٔ همداسې يوهٔ هيواد کښې يو چاپ شوی علمي کتاب چې د نړۍ د هيوادونو معرفي پکښې ده، د افغانستان د اوسيدونکو احصائيه داسې ورکوي: د افغانستان خلك پهٔ ٪ ٦٠ پښتانه قومونه، پهٔ ٪ ٣٠ تاجيك، پهٔ ٪ ٥ اوزبك او پهٔ ٪ ٥ هزاره او نور دي، اوسيدونکي يې پهٔ عمده ډول مسلمان (اکثر سني) او لويې ژبې يې عبارت دي له پښتو، دري او اوزبکي څخه، ليکدوديې عربي دی. خو د همدې هيواد د سياست ادارې چې بيا پهٔ افغانستان کښې د خپلو ناوړو غرضونو د پلي کولو پهٔ فکر کښې کيږي نو بيا پهٔ بل کتاب کښې د احصائيو پهٔ خلق کولو لاس پورې کوي او ليکي: د افغانستان اوسيدونکي پهٔ ٪ ٣٥ پښتانه، په ٪ ١٥ تاجك، پهٔ ٪ ٢٥ اهل تشيع او پاتې يې نور قومونه دي.

تاسې وګورئ چې تفاوت ده از کجا تا به کجاست؟ او ددې دښمنانو د غرض سترګې څومره ړندې دي او څنګه غواړي چې دداسې احصائيو پهٔ رامنځته کولو سره د افغانستان ملي وحدت ته زيان واړوي او دا ميړنی او پردی شکن ملت د نورو جګړو پهٔ اورونو کښې راښکيل کړي.

نو موږ بهٔ پهٔ دې حساسه مرحله کښې د نړيوالو معيارونو له مخې، د ملګرو ملتو پهٔ مرستو وکړای شو داسې سراسري سرشميرنه وکړو چې واقعي احصائيې لاس ته راشي او د هغې نتايج بهٔ له يوې خوا بدګومانۍ او شکونه له منځه يوسي او د بهرنيو دښمنانو دسيسې او وسوسې بهٔ شنډې کړي او له بلې خوا بهٔ د همدې احصائيو پهٔ ډاډ تر هر څهٔ وړاندې د خپل هيواد اجتماعي او سياسي اړا نه پهٔ يوه عادلانه سيستم جوړه کړو او ورسره به خپل اقتصادي او فرهنګي ټول پروګرامونه عيار کړو او د لوی خدای جل جلاله پهٔ مرسته بهٔ پهٔ افغانستان کښې يو داسې ملي اسلامي نظام ټينګ شي چې د واحد ملت د هيڅ قوم منسوبينو، د هيڅ مذهب پيروانو او د هيڅ سيمې اوسيدونکو ته بهٔ د هيڅ راز ګيلې ځای نهٔ پريږدي او پهٔ بشپړه ملي لورينه بهٔ د ټول ملت له پاره کار کوي.

## پنځم گام

# نوی ملکي او اداري ویش

په افغانستان کښې به په نړیوال معیار او نړیواله مرسته د شوې سرشمیرنې له مخې ټولې اتنیکي او نژادي، مذهبي او سیمه ییزې محاسبې او احصائیې تر لاسه شي او ددې احصائیو له مخې به هیواد داسې نوي اداري او ملکي ویش ته چمتو شي چې ددې ټولو احصائیو د نتایجو په نظر کښې نیولو سره به په هیواد کښې نوي ولایتونه او اولسوالۍ جوړې شي او ددې ویش له مخې به هر څوک، د هرې سیمې خلك، له هر قوم سره مربوط خلك، د هرې ژبې ویونکي خلك او د هر مذهب پیروان ددې جوګه شي چې په خپل ګډ او تاریخي هیواد کښې په عادلانه ډول خپل ټول فرهنګي، اقتصادي، سیاسي او اجتماعي حقوق تر لاسه کړي او د دولت هره اداره به د همدې احصائیو په بنا هرې-هرې سیمې ته خپل پروګرامونه جوړوي او دخلکو له اړتیاؤ او غوښتنو سره سم به یې عیار وي.

دلته دا هم د یادولو ده چې په افغانستان کښې د خپلواکۍ تر لاسه کیدلو وروسته د هیواد ملکي ویش په پنځو ولایتونو او څلورو اعلی حکومتونوولاړ ؤ، تر مرکز پرته نور ولایتونه په نایب الحکومګیو یادیدل، په ۱۲۹۹ هـ ش (۱۹۲۰ ع.) کال هیواد د کابل، کندهار، هرات، ترکستان، قطغن او بدخشان په نامه ولایتونه درلودل او اعلی حکومتونه په مشرقي، جنوبي، فراه او په میمنه کښې وو. په ۱۳۰۹ هـ . ش. کال کښې د اورګون مستقل حکومت هم پرې ور زیات شو. په ۱۳۱۸-۱۳۱۹ کلونو کښې د هیواد په ملکي ویش کښې زیاتې لاسوهنې وشوې او په ټولو ولایتونو کښې لوی-لوی حکومتونه جوړ شول.

خو د هیواد په ملکي ویش کښې ډېر لوی بدلون په ۱۳۴۳ هـ ش کال کښې راغی او ټول هیواد په لاندې ۲۸ ولایتونو وویشل شو:

۱- بلخ د (٦) اولسوالیو او (٤) علاقداریو په لرلو سره.
۲- بغلان د (٤) اولسوالیو او (٤) علاقداریو په لرلو سره.
۳- سمنگان د (۲) اولسوالیو او (۳) علاقداریو په لرلو سره.
٤- کندوز د (٤) اولسوالیو او یوې علاقدارۍ په لرلو سره.
۵- هرات د (۱۰) اولسوالیو په لرلو سره.
٦- بادغیس د (۳) اولسوالیو او (۳) علاقداریو په لرلو سره.
۷- نیمروز د (۳) اولسوالیو او (۳) علاقداریو په لرلو سره.
۸- فراه د (٤) اولسوالیو او (۵) علاقداریو په لرلو سره.
۹- کندهار د (۸) اولسوالیو او (۵) علاقداریو په لرلو سره.
۱۰- زابل د (٤) اولسوالیو او (٦) علاقداریو په لرلو سره.
۱۱- کابل د (۷) اولسوالیو او (۳) علاقداریو په لرلو سره.
۱۲- لوگر د (۲) اولسوالیو او (٤) علاقداریو په لرلو سره.
۱۳- وردګ د (۳) اولسوالیو او (٤) علاقداریو په لرلو سره.
۱٤- پروان د (٦) اولسوالیو او (۷) علاقداریو په لرلو سره.
۱۵- کاپیسا د (۲) اولسوالیو او (۱۱) علاقداریو په لرلو سره.

١٦- ننگرهار د (٦) اولسواليو او (١١) علاقداريو پهٔ لرلو سره.
١٧- لغمان د (٢) اولسواليو او (٣) علاقداريو پهٔ لرلو سره.
١٨- کونړ د (٦) اولسواليو او (٦) علاقداريو پهٔ لرلو سره.
١٩- بدخشان د (٥) اولسواليو او (٧) علاقداريو پهٔ لرلو سره.
٢٠- جوزجان د (٤) اولسواليو او (٧) علاقداريو پهٔ لرلو سره.
٢١- هلمند د (٧) اولسواليو او (٧) علاقداريو په لرلو سره.
٢٢- غور د (٥) اولسواليو او (١) علاقدارى پهٔ لرلو سره.
٢٣- روزگان د (٦) اولسواليو او (٣) علاقداريو پهٔ لرلو سره.
٢٤- باميان د (٣) اولسواليو او (٢) علاقداريو پهٔ لرلو سره.
٢٥- غزني د (٦) اولسواليو او (٨) علاقداريو پهٔ لرلو سره.
٢٦- پکتيا د (١٦) اولسواليو او (١٥) علاقداريو پهٔ لرلو سره.
٢٧- فارياب د (٤) اولسواليو او (٧) علاقداريو پهٔ لرلو سره.
٢٨- تخار د (٦) اولسواليو او (٧)علاقداريو پهٔ لرلو سره.

خو کله چې همدا وخت پهٔ هيواد کښې د اولسي جرگې له پاره انتخابات وشول نو د انتخاباتو د قانون له مخې يوازې له هرې اولسوالۍ نه د يوهٔ نماينده د راټللو چانس ؤ او هغو ولايتونو چې ډيرې علاقدارۍ درلودې کهٔ څهٔ هم له اداري لحاظه خلکو ته سهولت ؤ خو له سياسي اړخه د علاقداريو اوسيدونکو د نماينده راليږلو حق نهٔ درلود او د زياتو علاقداريو درلودونکو ولايتونو ته زيات سياسي زيان واوښت.

په راوروسته کښې ځینې نور ولایتونه هم جوړ شول او ځینې علاقداری هم په اولسوالیو واوښتې خو له دې ټولو سره-سره عادلانه اداري او ملکي ویش منځ ته نهٔ دی راغلی.

دا ځل به د بې طرفه حکومت له خوا د. تر لاسه شویو احصائیو له مخې ولایتونه او خصوصاً اولسوالی په داسې ډول جوړیږي چې لومړنی زده کړې بې تکلیفه د هغې سیمې د خلکو په ژبه کښې شي، اخبار-راډیو-تلویزیون په باوري فیصدي د خلکو د اوسیدونکو له پاره ددوی په ژبو نشرات وکړي، انکشافي پلانونه د سیمې د خلکو له اړتیاؤ سره سم عیار شي او له سیاسي اړخه د هیواد ټول خلك په اولسی جرګه، مشرانو جرګه او لویه جرګه کښې نمایندګان ولري. له قضایي اړخه به قاضیان د سیمې د خلکو له مذهبي غوښتنو سره سمې پریکړې کوي او په دې توګه به دا نوی اداري او ملکي ویش د خلکو له راز-راز غوښتنو سره سم او عادلانه وي.

## شپږم گام

# د قوانینو تسوید

د ډاډمن امنیت تر ټینګولو، د سراسري سرشمیرنې تر ترسره کولو او د نوې ملکي اداري ویش ترکولو وروسته به د بې طرفه مؤقت حکومت بل ګام د «اساسي قانون» او د ضروري «فرعي قوانینو» د تیارولو په لور وي.

١٧ حکومت به د اساسي قانون د تسوید له پاره یوه داسې کمیټه ټاکي چې د نړیوالو حقوقو متخصصین، د اسلامي فقهې ماهرین او د افغاني ټولنې ټولنپوهان به پکښې راغونډوي، دوی به د هرې مادې په لیکلو کښې نړیوال قوانین، اسلامي اساسات اود افغانستان د ملت غوښتنې او شرایط په نظر کښې نیسي او له ګوندي، سمتي، نژادي او مذهبي تعصبونو نه د باندې به داساسي قانون د متن مسوده تیاروي او یو داسې قانون به جوړوي چې د تطبیق ساحه ولري او دافغانستان ملي او نړیوال حیثیت پکښې په ښه توګه ځلیدلی وي.

د اساسي قانون د تسوید تر څنګ ځینې ضروري فرعي قوانین هم باید د یوه هیأت له خوا تسوید شي، په دې قوانینو کښې د اوس له پاره ډیر مهم یې:

١- دا حزابو قانون،

٢- د انتخاباتو قانون او

٣- دمطبوعاتو قانون دي.

## ۱- د احزابو قانون:

ددې قانون په باب دا هم د یادولو ده چې موږ تر اوسه په افغانستان کښې د احزابو نافذ قانون نهٔ درلود او له همدې امله په افغانستان کښې احزاب قانوني نهٔ دي او همدا بې قانونه احزاب وو چې په تیرو اتلسو کلونو کښې یې افغانستان وران کړاو د قدرت د هوس او د مادي ګټو لپاره د افغانستان د ټولو ملي مصالحو خلاف دپردیو هیوادو غیرې ته ولویدل او ملی ګټې یې تر پښو لاندې کړې. که څه هم په هیواد کښې دا حزابو یو نا نافذ شوی قانون شته چې د شاهي دوران د دموکراسۍ په لسیزه کښې تسوید شوی ؤ خو نهٔ هغه وخت او نهٔ اوس زموږ د سیاسی غوښتنو خوابګوی ؤ. (ددې قانون د مسودې یو متن د لیکونکی په کتابتون کښې خوندي دی) همدا راز نجیب چې کوم د احزابو په نامه قانون راایستلی ؤ هغه نور ښکیلاکي اهداف درلودل او لکه څرنګه چې ددهٔ حکومت افغانانو ته قانونیت نهٔ درلود همدا راز یې قانون هم رد او د ملي خپلواکۍ او ملی ګټو ضد ؤ. نو د احزابو د قانون نوې مسوده به داسې کسان کوي چې له حقوقي تخصص سره-سره په افغانستان کښې داحزابو په تاریخ او کړو وړو هم ښهٔ خبر وي او ژوره مطالعه پرې ولري. ۱۸

## ۲- د انتخاباتو قانون:

دا قانون په افغانستان کښې لومړی ځل په ۱۳۰۷ کال کښې جوړ شوی ؤ خو د اماني حکومت د ړنګیدلو له امله عملي نهٔ شو او بیا د نادر- شاه په وخت کښې په لږ تغییر نافذ او په هیواد کښې اولسي جرګه جوړه شوه. د دموکراسۍ په لسیزه کښې دا قانون په نوې بڼه راووت او د هغې له مخې د اولسي جرګې له پاره څو دورې انتخابات وشول او بیا د کودتایي حکومتونو له امله د انتخاباتو قانون له منځه ولاړ او د نجیب د وخت فرمایشي انتخاباتو هیڅ قانوني حیثیت نهٔ درلود. د انتخاباتو د نوي قانون متن به ددې ټولو سوابقو په نظر کښې نیولو او د نوې سراسري

سرشمیرنې پهٔ اساس رامنځ ته شوي نوي ملکي او اداري ویش له مخې ترتیبیږي او داسې یو قانون بهٔ وي چې د افغانستان ټول ملت ته د برخې اخیستلو حق پکښې حاصل وي.

## ۳- د مطبوعاتو قانون:

موږ پهٔ خپل هیواد کښې د مطبوعاتو قوانین له ۱۳۰۳ کال راوروسته لرو چې وخت پهٔ وخت بدلونونه پکښې شوي خو پهٔ تیرو پنځلسو کلونو کښې پهٔ هیواد کښې د ننه مطبوعات د ملي پالیسۍ پر ځای د روسي پالیسۍ تابع وو او دکودتایي واکمنو د ظالمانه رژیم د بقا سندرې یې ویلې او له هیواد نه بهر مطبوعات دومره خوارهٔ وارهٔ وو چې د انارشیزم یوه ډیره ښه نمونه یې بللای شو، ځینې د رهبرانو پهٔ خدمت کښې وو او ددوی هره وینایې د کاڼي کرښه بلله او ځیني نور بیا فردي، شخصي او د هغه او دغه د منافعو له پاره وو او حتی نشراتو پهٔ ډیر جرأت د ملي کرکې د رامنځ ته کولو له پاره پهٔ خلاص مټ کار وکړ چې اغیز یې موږ د هیواد پهٔ تیرو درې نیم کلنو جګړو کښې ولید نو پهٔ دې ملحوظ به د مطبوعاتو قانون هم د انساني، اسلامي، اخلاقي او ملي ارزښتونو پهٔ نظر کښې نیولو سره تسوید او جوړیږي.

ددې قوانینو پهٔ تسوید سره بهٔبې طرفه حکومت پهٔ هیواد کښې د قانوني ادارې د جوړیدو پهٔ لور یو بل مهم ګام اخلي او پهٔ افغانستان کښې بهٔ د وحشت او بربریت پر ځای د قانونیت له پاره لاره هواروي.

۱۹

# اووم گام

# لويه جرگه

بې طرفه حکومت به د ډاډمن امنيت په رامنځ ته کولو سره په هيواد کښې د سياسي تنفس زمينه برابره کړي، د سراسري سر شميرنې په وسيله به په هيواد کښې دقيقې احصائيې تر لاسه کړي، د نوي ملکي اداري ويش په وسيله به انتخابي حوزې تثبيت کړي او دقوانينو د تسويد سره به د قانوني چلند مرحلو ته ورسيږي.

اساسي قانون به تر تسويد وروسته د اولس نماينده گان تصويبوي او د اولس د با صلاحيته نماينده گانو د ټاکلو او راغونډولو يوازينۍ لاره لويه جرگه ده، لويه جرگه نه يوازې دا چې زموږ يوه ملي عنعنه ده بلکه زموږ داولس د زرگونو کلونو د سياسي تجربې نتيجه ده او همدا يوازينۍ تاريخي مقام دی چې د اولس برخليک ټاکي او د اولس د سياسي ژوندانه اډانه برابروي.

لويه جرگه له درې-درې نيم زره کلونو را په دې خوا زموږ په هيواد کښې يوه يوازينۍ سياسي مؤسسه ده چې د افغانستان ملت ته ورپيښې ستونځې، پرابلمونه او بن بستونه يې وخت په وخت له منځه وړي او دملت تر منځ يې د «ملي مصلحت» زمينه رامنځ ته کړې ده.

په اوسني افغانستان کښې ميشتو پخوانيو آريائيانو د خپلو شخړو د حل او دخپلو ټولنيزو چارو د سمون له پاره دوې جرگې درلودې، يوې جرگې چې لويه جرگه وه د ټول ملت په سطحه کار کاوه او بلې جرگې محلي ستونځې هوارولې، همدا عنعنه زموږ په تاريخ کښې موږ ته په ميراث راپاتې شوه، په اتلسمه ميلادي پيړۍ کښې ميرويس نيکه او احمد شاه بابا پر هيواد باندې د پردو د تيريو سيورى د همدې لويو جرگو د لمر په رڼا

کښې له هیواده لرې کړ او زموږ په آزادۍمین ملت خپلواکي يې تأمین او تضمین کړه.

په شلمه پیړۍ کښې د دوو تباه کوونکو لویو جګړو له لنبونه زموږ هیواد د همدې لویو جرګو په تدبیر او پریکړه وژغورل شو او په هیواد کښې له ۱۹۲۳ کال را په دیخوا داساسي قانون خبنته او بیايې دوام د همدې لویو جرګو د پریکړو محصول ؤ.

په هر صورت لويې جرګې په عملي توګه ثابته کړې چې زموږ د ټولنې دا ویاړمنه او اغیزمنه سیاسي مؤسسه زموږ د ملت په سیاسي ژوند کښې لوی لاس لري او هر وخت ملت د تباهۍ او بربادۍ له کندې څخه راایستلای شي.

کمونستان چې په ۱۳۵۷ کال کښې د افغانستان پر سیاسي قدرت مسلط شول نو د روس دسیاسي ملاتړ په وړاندې يې ټولو ملي ارزښتونو ته لته ورکړه او د لويې جرګې او اولسي جرګې پر ځای يې د روسانو په تقلید پلار وطنې او مور وطنې جبهې جوړې کړې خو کله چې دافغانستان مؤمن او قهرمان ملت د خپل هودمن پاڅون په وسیله کمونستي رژیم ته ژور او و ژونکي ټکانونه ورکړل نو له ډيره مجبوریته يې د قلابي او جعلي لویو جرګو په جوړولو لاس پورې کړ خو وخت تر وخت تیر ؤ او د ملت د قهر په څپو کښې لاهو شول.

اوس هم چې د اسلامي حکومت په نامه له څلورو کلونو راهیسې کومه اداره جوړه شوې د ځان د اسلامي ثابتولو له پاره په درنو-درنو حلقي الفاظو پسې ګرځي او په دې ډله کښې يې دلويې جرګې پر ځای هم د «اهل حل و عقد» نوم غوره کړ او خپل برېښې يې پکښې راټول کړل خو عملي نه شوه او د یوې قانوني ادارې د جوړېدو نتیجه پرې مرتبه نه شوه نو له دې کبله به مؤقت حکومت مکلف وي چې د اساسي قانون د منلو له پاره لویه جرګه راوغواړي او ددې جرګې په ترکیب کښې به د اهل حل و عقد پر خلاف پر دیني علماوو سربیره، قومي مشران، روشنفکران او هغه غازیان چې روس او د هغه مزدورانو ته يې ماته ورکړې هم برخه ولري او دا ټول به په ګډه د خپلو تجربو په رڼا کښې دخپل ملت برخلیک ټاکي.

## اتم گام

# د قوانینو انفاذ

لویه جرگه بهٔ د نوي اساسي قانون پهٔ تصویبولو سره هیواد یو ځل بیا د قانون عادلانه غیرېږ ته واچوي چې د دولت مشر بهٔ دا قانون توشیح کوي، د عدل او قانون اداري بهٔ یې تعقیبوي، دولتي اداري بهٔ یې تعمیلوی او دغنګل روان قانون بهٔ پای ته رسیږي.

د اساسي قانون له نفاذ سره سم بهٔ د احزابو، انتخاباتو، مطبوعاتو او ځینې نور مهم قوانین د دولت د تقنیني فرامینو له مخی چلند ته لویږي او د افغاني ټولنې د ژوند ټولې ساحې بهٔ قانونی مسیر مومي.

د قوانینو انفاذ او حمایت بهٔ افغانانو ته موقع ورکړي چې پهٔ خپله خوښه د خپل هیواد له شرایطو سره سم پهٔ هیواد کښې د لومړي ځل لپاره قانوني احزاب تشکیل کړي او د ټوپکونو او توپونو تر ایښودلو وروسته پهٔ منطق او د خدمت پهٔ پروګرامونو سنبال ملت ته ور وړاندې شي او دانتخاباتو له پاره کمپاین پیل کړي.

همدا راز بهٔ د مطبوعاتو قانون د هیواد لیکوالانو، روشنفکرانو او پوهانو ته ددې موقع مساعده کړي چې د خپلو ملي ګټو پهٔ نظر کښې نیولو سره قلم پورته اود کاغذ مخ ته څهٔ وسپاري اود وروستیو اوولسوکلونو مطبوعاتي انارشي او د مطبوعاتو له لارې دپردو بادارانو خدمت جبیره کړي.

د قوانینو پهٔ انفاذ سره بهٔ د زور له لارې د واکمنی دعوې پای ته ورسیږي، زور ګویي او د وسلو پهٔ زور پر خلکو ځان تپل بهٔ نور پهٔ ټولنه کښې مردود او مطرود شي.

د قوانینو انفاذ بهٔ دولت ته د مشروع قدرت او اتوریتې د تعمیل زمینه مساعده کړي او د قوانینو انفاذ بهٔ ملت ته حق ورکړي چې د خپل ځان، دخپلو شتو، خپل حیثیت او بالاخره خپلو ملي حقوقو، شتمنیو او حیثیت د ساتلو له پاره مراجع وپیژني او له هغوی نه خپل حق او غوښتنې تر لاسه کړي.

## نهم گام

# عمومي انتخابات

د افغانستان د عبوري او مؤقت حکومت يو ډير مهم کار به تر ټولو قانوني لارو هوارولو وروسته په ټول هيواد کښې د بې وېرې، آزادانه، عادلانه او واقعي انتخاباتو ترسره کول وي.

د انتخاباتو د عادلانه قانون له مخې به هغه ټول افغانان چې قانوني سن يې پوره کړې وي په انتخاباتو کښې برخه اخلي، ښځې او نارينه به دواړه د خپل برخليك په ټاکلو کښې مساوي ونډه لري، د نفوسو تناسب به د يوې حوزې د وکالت ونډه جوړوي، د احزابو پر ځای به اشخاص چې ګوندي او هم آزاد شخصيتونه به وي کانديديږي. د عقيدې، ژبې، سيمې او نژاد اختلاف به د رايې په برخه کښې هيڅ اغيز نه لري او لکه د راغلي تعامل غوندې به يوازې جنايتکاران او له مدني حقوقو نه محروم شوي کسان حق نه لري چې په انتخاباتو کښې د کانديدونکي په حيث برخه واخلي اوملي امانت تر لاسه کړي.

د انتخاباتو څارنه به په بيروني سطحه د ملګرو ملتو او داسلامي هيوادو د کنفرانس د هيأتونو له خوا کيږي، د انتخاباتو چارې به د پوهنې او قضا منسوبين پرمخ بيايي او امنيتي چارې به يې د دفاع او داخلې وزارتونو هيأتونه چې پخوا به په ملي سطح جوړ شوي وي، ترسره کوي.

انتخابات به سري، آزاد او بې له جبر او اکراه تر سره کيږي او وسله وال ځواکونه به حق نه لري چې د انتخاباتو په ساحه کښې وګرځي او يا څوك تهديد او تخويف کړي.

د داسې بې وېرې او عادلانه انتخاباتو له لارې به د اولس نمايندګان چاڼ او په ګران هيواد افغانستان کښې به د يوه قانوني او عادلانه حکومت د جوړولو منزل را لنډ شي.

## نتيجه

# منتخب حکومت

په افغانستان کښې به د بې طرفه مؤقت حکومت راتلل په لومړي قدم کښې د بې امنۍ د مخ نيولو او د بې طرفه لښکر او پوليسو په رامنځ ته کولو سره د دائمن امنيت ټينګ کړي او بيا به ګام په ګام د سراسري سرشميرنې، نوي ملکي اداري ويش، د قوانينو جوړولو، لويې جرګې رابللو، دقوانينو د انفاذ او بيا د عمومي انتخاباتو د کولو له لارې د يوه منتخب حکومت جوړيدلو ته لاره هواره کړي او په دې وسيله به افغانستان وکړای شي چې د يوه قانوني او مشروع حکومت څښتن شي.

منتخب حکومت به د عمومي پارلماني انتخاباتو په نتيجه کښې د بريالي ګوند له خوا جوړيږي او اپوزيشن به د قانون په چوکاټ کښې منطقي مخالفت ورسره کوي. د اقتدار ليونۍ جګړه به پای ته رسيږي او د وسله والي مسابقې او برترې غوښتلو هڅې به د تل له پاره ختميږي. په پارلماني شخړو کښې به د اولس لپاره د جګړو خطر نه وي او حکومت او اپوزيشن به په ګډه هڅه کوي چې د اولس د هوسايۍ او سوکالۍ له پاره ګامونه واخلي او پروګرامونه جوړ کړي.

په افغانستان کښې به د منتخب حکومت په رامنځ ته کيدو سره د افغانستان اساسي قانون او نور فرعي قوانين د دولت او حکومت

صلاحیتونه، وظایف، د کار طرز او د انتخاب ډول ټاکي او د ټولو شخړو د حل لارې به دقانوني بهیر له لارې تر سره کیږي.

په دې ترتیب که په افغانستان کښې د قانوني اداري د جوړولو په لور پورتني ګامونه وانه خیستل شي نو په هیواد کښې به له بلې هرې لارې څخه د یوه قانوني، ملي او دخلکو د نماینده حکومت د جوړیدو هڅې بې نتیجې وي او د اقتدار ناولې او خونړۍ جګړې به دوامداري شي او هغه فاتح ملت به چې د شوروي غوندې نړیوال طاقت یې رانسکور کړی په دې بې سره اور کښې پوخ او مضمحل شي.

په دې حساسه مرحله کښې ټول افغانان د نړۍ په هر ګوټ کښې چې اوسیږي، مکلفیت لري چې دخپل هیواد د نجات له پاره لاسونه سره یو کړي، واحد اقدام وکړي، د نړیوالو ټولنو مرسته وغواړي او په خپل ګران هیواد کښې د یوې قانوني اداري د ټینګولو لپاره ګډه هڅه وکړي او په هیواد کښې د یوه قانوني او منتخب حکومت د رامنځ ته کولو له پاره لاره هواره کړي.

و ما علینا الا البلاغ!

# یادښت

دافغانستان د بشر د حقوقو د اعلامیې طرح ما په ۱۳۷٤ / ۱۹۹۵ کال په افغانستان کښې د بشر د حقوقو سمینار له پاره چې د CCA— له خوا جوړ شوی ؤ لیکلې وه چې د سمینار ګډون کوونکو په یوه خوله تأیید او د سمینار له خوا تصویب کړه، دا دې دا طرح د نورو افغانانو مخې ته هم ږدم او هم ددې له پاره چې په افغانستان کښې د بشر د حقوقو تاریخي ښیره روښانه شوې وي د بشر د حقوقو د تثبیت او تأمین منابع مې ـ هم د مقدمې او مدخل په توګه په لنډ ډول ورسره ښیرلي دي او له دې طرحې سره یې وړاندې کوم !

په مینه

ح – رفیع

# پهٔ افغانستان کښې دبشر دحقوقو دتثبیت او تأمین منابع

# او

# «دافغانستان دبشر دحقوقو غوښتنلیك»

پهٔ افغانستان کښې دبشر دطبیعي، مدني او سیاسي حقوقو سیر دتاریخ ډیرو لیرې پوړیو ته رسیږي او دهغو بشري حقوقو بیلابیلې برخې چې نن پهٔ نړۍ کښې داساسي حقوقو پهٔ توګه مطرح دي وخت پهٔ وخت پهٔ نظر کښې وې او دتاریخ پهٔ مسیر کښې یې دتثبیت او تأمین نخښې راپاتې دي.

پهٔ عمومي توګه دافغانستان پهٔ تاریخي ژوند کښې دبشر دحقوقو دتعیین، تثبیت، تأمین او تضمین منابع پهٔ څلورو برخو کښې مطالعه کولای شو:

١- افغاني عنعنه.
٢- اسلامي احکام.
٣- اساسي قوانین.
٤- دبشر دحقوقو نړیواله اعلامیه.

چې لاندې پهٔ لنډیز پرې غږیږو:



# يادښت

پر دې طرح باندې ما له هغه وخت نه فکر پیل کړی چې څلور کاله وړاندې په افغانستان کښې د کمونستانو تر سقوط وروسته د اقتدار پر سر لیونۍ او خونړۍ جګړې پیل شوې.

ددې طرحې په ارتباط ما دا درې کاله وخت په وخت لیکنې کړې چې په بیلا بیلو خپرونو کښې راغلي دي خو ددې طرح بشپړ شوی او وروستی شکل دا دی په دې رساله کښې وړاندې کیږي او زه ددې رسالې له چاپیدو سره په خپلو ټولو هغو هیوادوالو چې د :

افغانستان ملي خپلواکي

د افغانستان ملي وحدت

او د افغانستان ملي ګټې

غواړي غږ کوم چې دا طرح په غوږ ولولي، که نیمګړتیاوې پکښېویني هغه ما ته ولیکي او که نه نو ملاتړ یې وکړي او د یوه ګډ غږ په توګه یې دنړیوالو او هیوادوالو غوږونو ته ورسوي چې د تطبیق او پلي کولو له پاره یې ګډ کار او زیار تر سره کړو.

په درنښت

حبیب الله رفیع

پست بکس، نمبر (٦٣٠)، جي. پي. او
پیښور، پاکستان

## ۱- افغاني عنعنه:

هغه څهٔ چې مونږ نن افغاني عنعنه ورته ويلای شو اساساً دآريانا پهٔ لرغوني تاريخي غيږه کښې بنيادګزاري شوې او دتاريخ له ډيرو ليرې پوړيو نه يې زمونږ پهٔ هيواد کښې دبشري حقوقو او ټولنيز ژوند اساسات ټاکلي دي او مونږ دا عنعنه پهٔ دوو تاريخي او کلتوري برخو کښې مطالعه کولای شو:

### الف) تاريخي بڼه:

دافغاني عنعنې پهٔ تاريخي برخه کښې دبشر دحقوقو مطالعه ددرې څلور زرو کلونو شا او خوا زمانې نه راپيلولای شو، دآريانا ويدي دوره تر تاريخ وړاندې او تاريخي دورې تر منځ يوه بله دوره ده چې مؤرخين نيمه تاريخي دوره ورته وايي (۱) پهٔ همدې وخت کښې دټولنې پوهان او هوښياران دويد نامعلوم سرودونه راپيلوي او تر هر څه وړاندې همدا سرودونه دي چې خلك پوهې او زده کړې ته رابولي او دټولنې داوسيدونکو تر منځ دټولنيزو آدابو او حقوقو دمراعات لارښوونې کوي چې ورپسې معلوم سرودونه هم همدا لاره پالي او دبشري حقوقو پولې او حدود ټاکي (۲).

پهٔ لرغوني آريايي ټولنه کښې دمشرتابهٔ حق دلياقت او کفايت له مخې تثبيتيدهٔ، دې حق طبيعي مراحل درلودل او پهٔ همهغه کوچياني دوره کښې چې لاښاري ژوند نهٔ ؤ پيل شوی دمشرتابهٔ مراتب ټاکلي وو له کورنۍ پيليدل او دټولنې تر واحد تشکل پورې رسيدل،دټولنې دتشکل لومړۍ کړۍ کورنۍ وه، پلاردخوراك دتهيه کولو او مور دهغه دمساوي او عادلانه رسولو مسؤوله وه، دې تشکل ته «کولا» (کهول) ويل کيدل، ورپسې تشکل «ګوترا»نوميدهٔ، پهٔ دې کښې بهٔ دقبيلې هغه کورونه رايو ځای وو چې ګډ «آغيل» (شپول) بهٔ يې درلود او څاروي بهٔ يې پهٔ ګډه پکښې درول، د«ګوترا» مشر بهٔ دټولو پهٔ خوښه ټاکل کيدهٔ، ورپسې «ګوشتي» وه او هغه ګڼ ګوتراګان بهٔ پکښې راغونډ وو چې ګډه ورشو او څړ ځای يې درلود، دې بهٔ هم يو انتخابي مشر درلود، دګوشتيو له مجموعې نه بيا «ګرامه» جوړيده او ددې بهٔ هم يو انتخابي مشر ؤ چې مونږ يې نن ديوې اولسوالۍ انډول بللای شو او دا بهٔ دخو څړ ځايونو دمجموعې نه جوړه شوې وه.دا دومره پوخ تشکل ؤ چې تر اوسه دګرام کلمه زمونږ دهيواد پهٔ ډيرو ۳۰

مکاني نومونو کښې شته لکه بګرام چې اوس هم يوه اولسوالۍ ده او داسې نور، ورپسې د«ويسه» يا «ديسه» تشکيل ؤ چې دځو ګرامو خلك به پکښې راټول وو چې له اوسني ولايت سره يې ورته بللای شو، «ديس» (٣) يا «ويس» به هم يوانتخابي مشر درلوده ددې تشکل دهرم په سر کښې د«جانا» په نامه وروستنی تشکل ؤ چې ديوې ورې پاچهۍ حيثيت يې درلود او مشر ته به يې چې خلکو ټاکلی ؤ راجان وايه، (٤) دا دآريانا دمالدارۍ او کوچياني دورې تشکيلات وو چې له همدې تشکل سره به يې دژمي او اورې ليږديدنې درلودې چې بيا وروسته دښارونو او ثابتو مرکزونو په جوړيدلو سره دمشرتابه ساحه نوره هم پراخه شوه او دانتخاب حق تر يوه حده پکښې وساتل شو.

په سياسي حق کښې دخلکو دښه ګډون او تمثيل په خاطر دوی دوې عنعنوي جرګې هم درلودې چې يوه «سبها» او بله «سميتی» نوميده، سبها به دکلي او سيمې ورې پيښې فيصله کولې او ځانګړې ټاکلې خونه يې درلوده، په دې جرګه کښې به سنځو هم برخه اخيسته او تردې بره د«سميتی» په نامه دلويانو جرګه وه چې مشران به پکښې راغونډيدل، دهيواد په سطحه پيښې به يې پکښې فيصله کولې او پاچا به هم پکښې ټاکل کيده (٥).

په آريايي ټولنه کښې له دې کبله چې داولادونو درلودلو زيات ارزښت درلود اوديرغلګرو مقابلې ته دځوانانو ضرورت ؤ نوهلك او جينۍ تر پنځلس کلنۍ وروسته مکلف وو چې ودونه وکړي، هلکانو او نجونو به معمولا د«سامانه» په ميله کښې سره خوښول، په واده کښې لومړی شرط دهلك او جينۍ خوښه وه ورپسې به دکورني رضايت هم ورسره ؤ چې دخاصو دودونو په ترڅ کښې ودونه ترسره شي. (٦)

طبقي په حاد شکل په ټولنه کښې مطرح نه وې، دمسلك په لحاظ که طبقات وو هم ګډ کار يې کاوه (٧) دغلامۍ دوره په هغه شکل چې په اروپا کښې وه او غلامان به له ځمکې سره خرڅيدل دلته مطرح نه وه.

ريشيانو چې دټولنې پوهه طبقه وه خاص درناوی درلود او ځوانانو زده کړې ته که څه هم شفاهي وه ارزښت ورکاوه او دريشيانو ويناوې يې چې انساني درسونه يې درلودل په مينه اوريدلې. (٨)

په اوستايي دوره کښې چې بلخ دلوړو بيرغونو دښار په توګه ديوې ځواکمنې واکمنۍ مرکز ؤ او زردشت د«ښه مننه، ښه وينه او ښه کړنه» تر

درې ګونو اصولو لاندې د «اهورا مزدا» په لمانځنه ولاړ دتوحید دین رامنځ ته کړ دخپلو تعلیماتو په رڼا کښې یې بشري حقوق نور هم روښانه کړل او خلك یې دیوې صالحې او سالمې ټولنې جوړولو او ساتلو ته راوبلل (۹) تر هغې را وروسته نورو ادیانو، عقایدو او مسالکو هم په خپل، خپل وار ددې هیواد ټولنې ته خپل اصول او لارښوونې وړاندې کړل چې دبشري حقوقو دګڼو اړخونو دتأمین او تضمین شرایط پکښې نغښتي وو.

### ب– کلتوري بنه:

په افغانستان کښې دټولنې دتنظیم او دبشري حقوقو دتثبیت او تأمین دې تاریخي عنعنې داسې کلتوري بنه هم خپله کړه چې لا تر اوسه هم په یو شمیر افغاني قبایلو کښې په شدت او حدت موجوده او تردې حده حاکمه ده چې حتی دتاریخ په اوږدو کښې زموږ حکومتونه اړ شوي چې همدې کلتوري عنعنې ته مراجعه وکړي او خپل پرابلمونه او وریښس مشکلات پرې حل کړي،له دې ډلې نه یوه هم لویه جرګه ده چې لا اوس هم دمشکلاتو دحل یوه ښه لاره بلله کیږي (۱۰).

دافغاني عنعنې کلتوري بڼه ځکه دوامداره پاتې شوې چې له یوې خوا زموږ ټولنه لا تر اوسه هم قبایلي ټولنه ده او حکومتونو په تمامه معنی تسلط نه پرې درلود نو ځکه دوی دخپل ټولنیز ژوند دتنظیم له پاره دا عنعنه ژوندۍ ساتلې ده او له بلې خوا ددې عنعنې کودونه دعملي تجربو له مخې تثبیت شوي او سره له دې چې شفاهي دي او دلیکلي قانون بڼه نه لري خو تطبیقي او عملي اړخ یې ډیر پیاوړی او اوسپنیز جزایي نظام یې تر شا ولاړ دی، ددې عنعنې له مخې ټاکل شوې جزاګانې قاطعې، نه بدلیدونکې او درشوت او واسطې له اغیزنه وتلې دي. په افغاني عنعنه کښې دانسان ژوند دومره مهم دی چې جرګه حتی دقتل په بدل کښې هم دقتل پریکړه نه کوي بلکه په قاتل او مجرم داسې ملاماتوونکې اقتصادي بار ږدي چې په دې نسبتاً فقیره ټولنه کښې بل څوك ددې بار له واره ورته جرم ته زړه نه شي ښه کولای او هم دا عنعنه دښمني دخپښیو په کولو سره له منځه وړي او په ټولنه کښې یوه نوې روحیه رامنځ ته کوي (۱۱).

په دې توګه افغاني عنعنه هم له تاریخي او هم له کلتوري اړخه ددې ټولنې دافرادو دحقوقو په ټاکنه او ساتنه کښې یوه اغیزمنه او عملي لار

وه او خصوصاً دجرګې او مسلات، جمهوري لاره په ښه توګه پکښې ښکاره او څرګنده وه.

## ۲- اسلامي احکام:

دافغانستان په خراساني دوره کښې دې هیواد ته داسلام دمقدس دین په راتللو او دخلکو له خوا ددې سپیڅلي دین په منلو سره دټولنې دحقوقي نظام دټینګښت له پاره اسلامي احکام ددوهمې منبع په توګه دخلکو دحقوقو دتأمین له پاره رامنځ ته شول.

داسلام مقدس دین چې یو بشپړ دین دی او دانساني ټولنې دنیوي او اخروي چارې، عبادات او معاملات ټول یې تر پوښښ لاندې دي، په قرآني آیاتو، نبوي احادیثو او فقهي متونو کښې دټولنې داوسیدونکو ټول حقوق ټاکلي او د: «آیت، حدیث، اجماع او قیاس» دڅلور ګونو سندونو له مخې دهغې چوکاټ بندي کیږي او زموږ په ټولنه کښې چې حکومتونو معمولاً شرعي محاکم پرانیستي وو اصولاً دتطبیق وړ وو چې دا حقوق پخوا نیو پاچایانو قسماً دفتاوو په بڼه تنظیمول.

په اسلام کښې دژوند کولو حق دیوانسان داسې مسلم حق دی چې هیڅا ته اجازه نشته چې هغه ترې واخلي، دمطلق انسان دوژلو په باب قرآن فرمایي:

**«من قتل نفساً بغیر نفس او فسادٍ فی الارض فکانما قتل الناس جمیعاً و من احیاها فکانما احیا الناس جمیعاً»** (۱۲).

ژباړه:

*«که څوک یو نفس بې له نفسه (بې بدله) او یا په ځمکه کښې تر فساد کولو پرته، ووژني نو ګواکې ټول خلک یې وژلي دي او چاچې دغه (یو نفس) ژوندی کړ (دژوند ددوام سبب یې شو) نولکه ټول خلک یې چې ژوندي کړي وي.»*

او دمسلمان دقتل په برخه کښې حکم کوي:

۳۳

«ومن يقتل مؤمنا متعمداً فجزائه جهنم خالداً فيها» (١٣).

ژباړه :

*«څوك چې يو مؤمن قصداً ووژني جزا يې جهنم ده چې تل به پکښې وي.»*

اسلام تبعيضونه غندي او انسان له يوه اصله او نسله بولي، قرآن حكيم فرمايي:

«يا ايهاالناس اتقوا ربكم الذى خلقكم من نفس واحدةٍ و خلق منها زوجها و بث منهما رجالاً كثيراً و نساءً» (١٤).

ژباړه:

*«اى خلكو! (تل) له خپل خدايه وويريږئ هغه چې تاسې يې له يوه نفسه (آدم عليه السلام) څخه پيدا كړئ او له هغه څخه يې د دهٔ جوړه (بي بي حواء) پيدا كړه او له دوى دواړو نه يې ډير سړي او ښځې خوارهٔ كړل».*

او پهٔ بل مبارك آيت كښې دانسانانو پهٔ قومونو او قبيلو كښې ويشل يوازې ددوى دسره پيژندل كيدلو له پاره بولي او بس:

«يا ايهاالناس انا خلقنكم من ذكرو انثى و جعلناكم شعوباً و قبايل لتعارفوا ان اكرمكم عندالله اتقيكم» (١٥)

ژباړه:

*«اى خلكو! تاسو ما پيدا كړي ياست له يوهٔ سړي او يوې ښځې څخه او ګرځولي مې يئ څانګې او قبيلې چې سره وپيژندل شئ، پهٔ تحقيق ستاسو ډير ښهٔ ستاسو متقي او نيكوكار دى».*

او همدا راز پهٔ يوهٔ بل مبارك آيت كښې دخلكو دژبو او رنګونو اختلاف دخداى نخښې ګڼي:

«و من آياته خلق السموت والارض و اختلاف السنتكم و الوانكم» (١٦).

ژباړه:

*«دلوى خداى له نخښو څخه داسمانونو او ځمكې جوړښت او ستاسو دژبو او رنګونو توپير دى».*

چې په ټولو کښې یوازې هغو چاته تفوق او برتري حاصله ده چې ښه کارونه کوي او د ټولنې له پاره ګټور وي.
او بالاخره د «**ولقد کرمنا بنی آدم** » (۱۷) په مبارك آیت سره انسان ته لوی خدای برتري، ښه والی، کرامت او خاص ارزښت ورکړی دی.
اسلام ټول انسانان دیوه پلار او مور اولاده او سره مساوي ګڼي :
«**خلقکم من نفس واحدة**» (۱۸) نارینه او ښځه یو دبل لباس بولي: «**هن لباس لکم و انتم لباس لهن**» (۱۹) او ټولو نارینه ؤ او ښځو ته دښو کارونو او نیکو عملونو دکولو توصیه کوي.
لوی خدای دمعلم اول په توګه آدم علیه السلام ته ټول نومونه ورښيي: «**وعلم آدم الاسماء کلها**» (۲۰)، خپل رسولان دخلکو لارښوونې ته رالیږي: «**هوالذی ارسل رسوله بالهدی و دین الحق**» (۲۱) په «قلم» سوګند خوري: «**ن. والقلم و ما یسطرون**» (۲۲) او انسان ته په قلم علم ورښيي: «**اقرأ و ربک الاکرم الذی علم بالقم**» (۲۳) او بالاخره داسلام لوی پیغمبر دعلم زده کړه د هر مسلمان نارینه او ښځې فریضه ګڼي : «**طلب العلم فریضة علی کل مسلم و مسلمة**» (۲٤) او دعلم دزده کړې له پاره لیرې ملکونو ته دسفر توصیه ورته کوي. ۳۵
اسلام چا ته اجازه نه ورکوي چې دچا کور ته بې اجازې ننوزي او یا دچا دکور په حریم تیری وکړي: «**فان لم تجدوا فیها احداً فلا تدخلوا حتی یؤذن لکم**» (۲۵).
همدا راز اسلام دبیان آزادۍ ته او دحقایقو معلوملو ته زیات ارزښت ورکوي او دافواهاتو په ګردونو کښې دحقایقو دلټولو توصیه کوي:
«**یا ایهاالذین آمنوا ان جائکم فاسق بنبإٍ فتبینوا ان تصیبوا قوماً بجهالة فتصبحوا علی ما فعلتم ندمین**» (۲٦) او دجابر حاکم په وړاندې حق ویل جهاد بولي: «**سئل رسول الله صلی الله علیه وسلم، ای الجهاد افضل؟ قال: کلمة الحق عند سلطان جائر**» (۲۷) اسلام شوری او مشوری ته په خاص اهمیت قایل دی: «**وامرهم شوری بینهم**» (۲۸) «**وشاورهم فی الامر**» (۲۹)، پیغمبران یې دخلکو له منځه را ایستلي: «**کما ارسلنا فیکم رسولاً منکم یتلوا علیکم آیاتنا**» (۳۰)، «**و ما ارسلنا من رسول الابلسان**

**قومه ليبين لهم**» (۳۱) او اولی الامر دخلکو له منځه راوتلي بولي او د «منکم» په تعبير څرګندوي چې د خلکو له منځه او دخلکو دخوښې دي وي: «**اطيعو الله و اطيعوا الرسول و اولی الامر منکم**» (۳۲).

داسلام سپيڅلی دين ښه او بده لار انسان ته ښيی او ددين په منلو کښې زور نه کوي: «**لا اکراه فی الدين قدتبين الرشد من الغی**» (۳۳) دمسافرت او اقامت آزادي ده: «**الم تکن ارض الله واسعة فتهاجروا فيها**» (۳٤) او هغه ټول بشري حقوق چی نن مطرح دی اسلام په خپلو احکامو کښې ځای کړي دي.

## ۳- دافغانستان اساسي قوانين:

په روانه پيړۍ کښې چې دبشر حقوقو جهاني ښه غوره کړه او دخلکو مبارزو په نړۍ کښې ملي حکومتونه رامنځ ته کړل او استبدادی حکومتونه په مشروطه او جمهوري واوښتل او دټولني دتنظيم له پاره اساسي قوانين جوړ او نافذ شول، افغانستان هم له دې بهير نه ليری پاتې نه شو او په ۱۹۱۹ کال کښې يې دخپلواکۍ تر ترلاسه کولو وروسته په قانون ولاړ مشروطه حکومت وموند او دې حکومت دلومړی ځل له پاره په ۱۹۲۳ کال کښې اساسی نظامنامه جوړه او نافذه کړه او په هغې کښې يې دافغانستان داتباعو عمومي حقوق له اتې تر ۲٤ مې مادې پورې په ګوته کړل او دخلکو دالاندې حقوق يې پکښې تعيين او تثبيت کړل:

- دافغانستان ټول اوسيدونکي بې له مذهبي او طبقاتي تبعيضه دافغانستان اتباع ګڼل کيږي.
- دهيواد ټول خلك فردي آزادي لري او دنورو پر فردي آزاديو تيری نه شي کولای.
- فردي حريت له هر ډول تيري نه خوندي دی، هيڅوك دمحکمې او قانون له حکمه پرته بندي کيدای او تر جزا لاندې راتلای نه شي، غلامي لغوه ده هيڅوك نه شي کولای بل کس دغلام او مريي په توګه وساتي.

۳٦

- دافغانستان دولت او اتباع حق لري چې ورځپاڼې او خپرونې وکړي خو خارجي نشرات ددولت له خوا کنټرولیږي.
- دافغانستان اوسیدنکي دتجارتي، صناعتي او زراعتي شرکتونو دجوړولو حق لري.
- دافغانستان ټول خلك په فردي او ډله ایزه توګه ددولت ټولو مقاماتو ته دخپل حق دغوښتلو له پاره مراجعه کولای شي.
- دافغانستان ټول خلك دوړیا زده کړې حق لري، ښوونځي ددولت له خوا اداره کیږي، غیر مسلم اقلیتونه په خپلو دیني زده کړو کښې آزاد او لومړنۍ زده کړې اجباري دي.
- دافغانستان ټول اوسیدونکي ددولتي قوانینو او شریعت په وړاندې مساوي حقوق لري.
- دافغانستان ټول اتباع دخپل استعداد او ددولت له اړتیا سره سم په ملکي ادارو کښې دکار کولو حق لري.
- په افغانستان کښې دټولو خلکو نغدي او جنسي شتمنۍ خوندي دي، دولت په زور دچا ملکیت نه شي غصبولی.
- دافغانستان دټولو اوسیدونکو استوګنځي داحترام وړ دي، هیڅ دولتي او غیر دولتي افراد دقانون تر حکم پرته دچا کورته بې اجازې نه شي ورننوتلای.
- په عدلي محکمو کښې ټولې پیسې او دعواګانې دشریعت او قوانینو له مخې فیصله کیږي.
- دچا دمال مصادره کول او پر هغه اجباري کار کول بیخي منع دي.
- دهر ډول شکنجو ورکول منع دي (۳۵).

د ۱۹۳۰ کال اساسي قانون هم دالفاظو او کله هم دمفاهیمو په تغییر دافغانستان خلکو ته پورتني حقوق ومنل (۳۶).

دهیواد د ۱۹٦٤ کال اساسي قانون پورتني حقوق یو ځل بیا تثبیت کړل او یو څه زیاتونې او څرګندونې یې پکښې وکړې، جرم یې شخصي کار وبالۀ او نور چاته سرایت نه کوي. دانسان تعذیب یې حتی دحقایقو دکشف په لاره کښې هم رواو نه بالۀ او په زور اخیستل شوی اقرار یې بې اعتباره وګڼه، په محکمه کښې دمدافع وکیل درلودل دمتهم دیو حق په توګه ومنل شول، پورورپیتوب دآزادۍ دمحدودیت سبب نه ګرځي، په هیواد

کښې دننه او له هیواد نه بهر د افغانانو تبعید بند شو، افغانان خارجي دولت ته پهٔ تورن کیدو نهٔ سپارل کیږي، دمخابراتو محرمیت تضمین شو، دبیان آزادي ومنل شوه البته راډیو او تلویزیون ددولت ماکیت وګڼل شول، دقانون له مخې افغانانو ته دګډ... ر جریدو اجازه ورکړه شوه، دناروغیو مخنیوی او تداوي ددولت وظیفه وګڼله شوه او کار دهر افغان فرض او حق وبلل شو. (۳۷)

## ٤- دبشر دحقوقو نړیواله اعلامیه:

پهٔ افغانستان کښې دبشر دحقوقو دخوندي کولو څلورمه منبع دبشر دحقوقو نړیواله اعلامیه ده چې د ۱۹۴۸ کال ددسمبر پهٔ ۱۰ نیته دملګرو ملتو دعمومي ټولنې له خوا تصویب او ومنله شوه او افغانستان دملګرو ملتو دیوه وفادار غړي پهٔ توګه همهغه دتصویب پهٔ ورځ هغه ومنله او پهٔ هیواد کښې یې متنونه دهیواد پهٔ رسمی ژبو خپارهٔ شول.

دبشر دحقوقو اعلامیه چې دنړۍ دبیلابیلو هیوادونو دعنعنو، عقایدو، ادیانو او تعاملاتو پهٔ نظر کښې نیولو سره جوړه شوې وه، د افغانانو له پاره هم مأنوسه وه ځکه دوی تردې وړاندې دخپلې عنعنې، اسلامي احکامو او اساسي قوانینو له مخې دا حقوق تر ډیره حده پیژندل او ورته آشنا وو.

دې اعلامیې پهٔ خپلو دیرش ګونو مادو کښې دبشر د سیاسي، اجتماعي او اقتصادي حقوقو بیلا بیل اړخونه وځیړل، تعیین یې کړل او غړیو هیوادونو یې له منلو سره دهغو دتطبیق مکلفیت وموند.

دې اعلامیې له لومړۍ تر څلورمې مادې دبشر ټول افراد آزاد او دحیثیت او حقوقو له پلوه برابر وګڼل، هر راز تبعیض یی رد کړ، هر څوک یې دژوند، امنیت او آزادۍ مستحق وبلل او غلامي یې لغوه وګڼله.

له پنځمې تر یوو لسمې مادې پورې یې هر ډول شکنجه او مجازات رد کړل، دهر چا حقوقي شخصیت یې تثبیت کړ، ټول یې دقانون پهٔ وړاندې

برابر وبلل، دانسان پر حقوقو دبلوسې پۀ صورت کښې نوموړي ته آزادو محکمو ته دمراجعی حق ورکړ شو، په خپل سر توقیف او تبعید رد شو او تور جرم ونۀ ګڼل شو.

له دوولسمې تر شپاړسمې مادې پورې دکور او لیکونو محرمیت، دهیواد پۀ هره برخه کې دآزاد ژوند کولو یا دهیواد پریښودلو او یا پۀ بل هیواد کښې د پناه اخیستلو حق، دتابعیت دټاکلو او دوادۀ کولو حق، تثبیتیږي.

اعلامیه له ۱۷ تر ۲۱ مادې پورې دفردي او اجتماعي ملکیت حق، دفکر، وجدان او مذهب دآزادی حق، دعقیدې، بیان او سوله ایزو ډلو دجوړولو حق، او دهیواد پۀ اداره کښې دمستقیمې او غیر مستقیمې برخې اخیستلو حق وټاکل.

له ۲۲ تر ۲۵ مادې پورې دټولنې هر غړي ته داقتصادي، اجتماعي او فرهنګي حقوقو تر لاسه کول ټاکل شوي او پۀ ګوته شوې چې دټولنې هر غړی دکار، استراحت او تفریح او دځان او کورنۍ دروغتیا او رفاه حق لري.

پۀ ۲٦ او ۲۷ مادو کښې دښوونې او روزنې او دخپل هیواد پۀ فرهنګي او هنري چارو کښې دګډون حق راغلی دی.

۳۹

پۀ ۲۸ او ۲۹ مادو کښې هر چا ته حق ورکړل شوی داسې نظام وغواړي چې دا آزادۍ خوندي او دداسې ټولنې پۀ وړاندې مسؤولیت لري چې دا حقوق او وجایب عملي کړای شي.

داعلامیې وروستنۍ یا دیرشمه ماده څرګندوي چې ددې اعلامیې هیڅ یوه ماده هم باید داسې تفسیر نۀ شي چې کوم دولت، یا ډلې او یا فرد ته حق ورکړي چې دهغې له مخې پۀ اعلامیه کښې یادې شوې آزادۍ یا لۀ منځه یوسي او یایې دله منځه وړلو هڅه وکړي (۳۸).

پۀ دې ترتیب موږ پۀ خپل هیواد افغانستان کښې دبشر دحقوقو دتعیین، تثبیت، تأمین او تضمین له پاره بیلا بیل لاسوندونه درلودل چې کۀ څۀ هم دټولنې دپسماندګی، دحکومتونو دغیر ملي توب او دبهرنیو عواملو له امله لکه څنګه چې لازمه وه او لکه څنګه چې پورتنیوځلورګونو منابعو ټاکلې وه پۀ افغانستان کښې دبشر حقوق ټول نۀ وو تضمین اوتطبیق شوي خو بیا هم تر ډیره حده بنیادي حقوق منل شوي او تطبیق شوي وو او ددې زمینه وه چې یو افغان لږ تر لږه خپل دا حقوق وغواړي.

# سریزه

د ۱۳۵۷ کال د غویي د اوومې نیټې د کودتا په کیدلو سره د افغانستان سیاسي نظم او اداره له قانوني محور نه ووتل اوداسې ګډ وډې شروع شوه چې خونړې پیښې او بې ساري جنایتونه ورسره مله وو، هیواد ته دلویو قدرتونو او د ګاونډیو لویو او وړو هیوادونو لاسونه را اوږده شول او هر یوه هڅه وکړه چې په افغانستان کښې د ځان له پاره کسان ولري.

په ۱۳۵۸ کال کښې پر افغانستان د روسانو له وسله وال تیري سره حالات نور هم خراب شول، د کمونستانو او مجاهدینو تر منځ جګړې تودې شوې چې د ملت مطلق اکثریت د مجاهدینو تر څنګ ولاړ ؤ او د همدې ملي قیام اوملي مقاومت له امله کمونستان ورځ په ورځ له ماتو او شکستونو سره مخامخ کیدل او د قدرت ساحه یې تنګیدله څو چې روسان وتښتیدل او کمونستانو د خپلې ماتې په منلو سره د ملګرو ملتو د سولې طرحې ته غاړه کښیښوده.

له بلې خوا د مجاهدینو بیلا بیلو ډلو چې له بیلا بیلو هیوادونو سره ایډیالوژیکي او د ګډو ګټو په اساس اړیکې پیدا کړې وې او د هغوی د ګټو د ساتندویۍ ژمنه یې ورسره کړې وه د هغوی په تحریك د ملګرو ملتو د سولې پلان رد کړ او هرې ډلې قدرت ته د رسیدو له پاره د کمونستانو له ماتې خوړلو خو وسله والو ډلو سره د نژادي او ژبني اړیکو په اساس د افغانستان په واحد ملت کښې یوه بله خطرناکه لوبه رامنځ ته کړه او د مجاهدینو او کمونستانو دوې مقابلې ډلې تجزیه شوې او یو نوی تشکیل یې وموند په دې ډول چې د یوې ژبې او نژاد مجاهدین د همهغې ژبې او

له بده مرغه په ورروستیو دوو لسیزو کښې دبشر دا ټول ټاکل شوي حقوق په یوه نه یوه ډول تر پښو لاندې شول او دا ټول افغاني، اسلامي او انساني موازین تر تیري لاندې راغلل چې باید بیرته احیاء او له ټولو ممکنو لارو نه تأمین او تضمین شي.

اوس چې دافغانانو ټول حقوق په ملی او نړیواله سطحه تر پښو لاندې شوي نو داوسنیو شرایطو، حالاتو او امکاناتو په رڼا او دیادو شوو بشري منابعو په نظر کښې نیولو سره دافغانانو له پاره باید دحقوقو یونوی غوښتنلیک جوړ کړو، داسې غوښتنلیک چې ددوی حقوق پکښې ګام په ګام وغوښتل شي، له اهم نه دمهم په لور ګامونه واخلو، له بنیادي حقوقو نه مدني او له ضروري حقوقو نه لوکسو حقوقو ته ورسیږو، زه بسم الله کوم او د افغانانو له پاره «دافغانستان دبشري حقوقو غوښتنلیک» جوړوم او ستاسو دې لویې غونډې ته یې وړاندې کوم.

# د افغانستان د بشر د حقوقو غوښتنليك

**سريزه :**

پهٔ تيرو دوولسيزو كښې دافغانستان دخلكو هغه ټول بشري حقوق چې دملي عنعنې، اسلامي احكامو، اساسي قوانينو اودبشر دحقوقو دنړيوالې اعلاميې له مخې يې درلودل له بهر نه دتپل شويو كودتايي حكومتونو او وسله والو جګړو له امله تر پښو لاندې شول، دحقوقو ټول منابع پهٔ وحشيانه ډول له نظره وغورځول شول او دې تيريو ورځ پهٔ ورځ تر نن پورې تكاملي پړاوونه ووهل.

پهٔ افغانستان كښې دبشر پر حقوقو باندې دتيري پهٔ پروسه كښې كورنيو او باندنيو لاسونو پهٔ ګډه كار كړى او ددې ملت دبدبخت كولو له پاره پهٔ نړيواله سطحه دسيسې او توطيې جوړې شوې او روانې دي.

دافغانانو دبشري حقوقو پر ضد پهٔ شويو او روانو جناياتو كښې دنړۍ ابرځواكونه، يو شمير ګاونډي او يو شمير نور مغرض هيوادونه او ورسره يو شمير تطميع شوې اووسله والې شوې داخلي ډلې شامل دي، دوى پهٔ ګډه پهٔ يوه پلمه او بله پلمه پهٔ افغانستان كښې دبشري حقوقو پر ضد فعاليتونه كړي او دافغانستان قانوني نظم اوامن يې ګډو ډكړي اوحتى زموږله خلكو نه يې دژوند حق چې دټولو حقوقو ابتداء ده هم سلب كړى دى.

موږ دبشر دحقوقو دتثبيت، تعيين، تأمين او تضمين دټولو يادو شوو منابعو پهٔ نظر كښې نيولو سره له لويو هيوادونو، دافغانستان پهٔ مسأله كښې ښكيلو هيوادونو، ګاونډيو هيوادونو، كورنيو وسله والو ډلو، داسلامي هيوادو سازمان او ملګرو ملتونو ته ددې غوښتنليك پهٔ وړاندې كولو سره غواړو چې زموږ دحقوقو پهٔ احياء كښې عملي ګام واخلي او تردې زيات دافغانستان خلك له خپلو بشري حقوقو نه محروم نهٔ كړي.

### لومړۍ غوښتنه ) دژوند حق:

له افغانانو نه دژوندحق په داسې ډول اخيستل شوی چې دګیډې له ماشوم نه نیولې تر نوي کلن او سل کلن بوډا پورې قصداً عمداً او بې له جرم او محاکمې وژل کیږي، ددې وژنو ساحه له هیوادنه بهر دمهاجرينو په لیکو کښې هم روانه ده نو موږ تر هر څهٔ وړاندې غواړو چې **«افغانانو ته دې دژوند کولو حق ورکړل شي»**.

### دوهمه غوښتنه) دمهاجرت او هیواد ته دستنیدو حق:

١- ټول انساني منابع حکم کوي چې هیڅوک حق نهٔ لري څوك له خپل هیواد نه په زور وباسي خو زموږ په ملیونونو کسان له خپل هیواد نه په زور ایستل شوي او سره له دې چې دوی هر آن هیله لري چې بیرته خپل هیودا ته ستانهٔ شي امابهرنۍ مداخله کوونکي او کورني وسله وال مزدوران یې دوی ته دهیواد دعودت حق نهٔ ورکوي او زمینه نهٔ ورته برابروي موږ غواړو چې: **هیواد ته د بیرته ستنیدو حق بیرته افغانانو ته ورکړل شي.**

٢- کوم افغانان چې په پاکستان، ایران او نورو هیوادونو کښې دمهاجرت ژوند تیروي دمهاجرت له حقوقو نه محروم دي، بشري مرستې پرې بندې شوې، دټولو بشري حقوقو خلاف څورول کیږي، بندیانیږي او له ځینې هیوادونو نه په زور ایستل کیږي، **دافغانو غوښتنه داده چې دمهاجرت حقوق یې ومنل شي.**

### دریمه غوښتنه) دامنیت حق:

دامنیت حق دبشر یومسلم حق دی خو زموږ په هیواد کښې امنیت له یوې خوا دپخواني شوروي دقواؤ، دکمونستي حکومت او مجاهدینو له ٤٢

خواخبښ کړای شوي مينونه تهديدوي او له بلې خوا بې سره او په خپل سر وسله والې ډلې دهيواد په ګوټ ګوټ کښې موجودې دي او دامنيت پر حق تيرى کوي **نو موږ د وادمن امنيت حق غواړوا** او دامنيت دټينګتيا په له پاره هيله کوو چې:

١- په افغانستان کښې دې دوطن دحفاظت له پاره **ملي اردو** جوړه شي.

٢- دهيواد دامنيت له پاره دې **دپوليسو ملي تشکل** رامنځ ته شي.

## څلورمه غوښتنه) دواحد حکومت درلودلو حق:

په بشري حقوقو کښې دهر هيواد له پاره داولس دخوښې دحکومت حق ورکړل شوى خو زموږ په هيواد کښې دقوماندانانو او تنظيمونو په شمير حکومتونه موجود دي او دهيواد بيلا بيلې اولسوالۍ دبيلا بيلو قوماندانانو او بيا دهيواد بيلا بيل ولايات دبيلا بيلو تنظيمونو په لاس کښې دي چې داداره کيدلو پر ځاى دتشنجونو دراولاړولو هڅې کوي **موږ په لومړى قدم کښې په هيواد کښې يو واحد حکومت غواړو.**

٤٣

## پنځمه غوښتنه) په خپل هيواد کښې د آزاد ګرځيدلو حق:

په خپل هيواد کښې دآزاد ګرځيدلو حق دټولو حقوقي منابعو له خوا ګڼل شوى غوښتنه ده خو زموږ خلك په ټول هيواد کښې ځکه چې دهيواد په يوه برخه کښې هم آزاد نه شي ګرځيدلى او وسله والې ډلې يې دپښتون، تاجك، اوزبك، هزاره، سني، شيعه يا هم دکابلي، هراتي، بامياني، کندهاري او نورو سيمو داوسيدونکو په نامه نيسي، پيسې ترې اخلي، وهي يې، مثله کوي يې او ووژني يې. **موږ افغانان په خپل هيواد کښې دآزاد ګرځيدلو حق غواړوا**

**شپږمه غوښتنه) د تبعیض ورکولو حق:**

دافغانستان بیلا بیل قومونه له زرګړنو کلونو راهیسې دیوهٔ واحد ملت پهٔ توګه پهٔ خپل هیواد کښې اوسیدلي، دورورۍ ژوند یې سره کړی، دخارجي دښمن پهٔ وړاندې پهٔ ګډه جنګیدلي او خپل هیواد یې پهٔ ګډه ساتلی دی. خو اوس بهرنیو لاسونو ځینې ډلې دتبعیض دپیدا کولو له پاره پهٔ افغانستان کښې مؤظفې کړي او راز-راز قومي، ژبني، مذهبي او سیمه ایز بیلتونونه یې راپیدا کړي، **موږ پهٔ خپل هیواد کښې دهر راز تبعیض ورکیدل غواړو** او خپل ملت ته چې یو واحد ملت دی او دتاریخ پهٔ اوږدو کښې یې تشکل کړی دی دملي وحدت خط السیر غواړو.

**اوومه غوښتنه) دحیثیت خوندي کیدلو حق:**

دافغانستان دنارینه ؤ او ښځو حیثیت دوسله والو او زورورو کسانو له خوا تر تهدید لاندې دی هیڅ بې هیڅه بې عزته کیږي او خصوصاً دښځو حیثیت تر دوامدار تیري لاندې دی، دوی له لارو او کورونو نه پهٔ زور بیولې کیږي، وسله والې ډلې دخپلو شیطانی غوښتنو دتسکین پهٔ خاطر جنسي تیری پرې کوي چې حتی کله-کله یې بیا وژني هم، پهٔ زور او اکراه یې نکاح کوي او اتیا-اویا کلن سپین ږیری ځوانې پیغلې دوسلو او پیسو پهٔ زور ځان ته کښینوی. **افغانان او خصوصاً افغاني میرمنې دخپل حیثیت دساتلو غوښتنه کوي.** ٤٤

**اتمه غوښتنه) دیرغمل نیولو بندول:**

وسله والې ډلې بې دفاع او بې ګناه ځوانان او کسان یرغمل کوي او بیا دخپلې خوښې پیسې پرې غواړي. کهٔ کورنۍ یې پیسې ورنهٔ کړای شي او یا یې ونهٔ مومي نو بیا بې رحمانه وژل کیږي **موږ غواړو چې دا یرغمل نیول دې بند شي.**

## نهمه غوښتنه) دکورونو محرمیت:

دهیواد په بیلا بیلو برخو کښې وسله والې ډلې ځان ته حق ورکوي چې دهرچا کور ته ورشي دکور دخوښې سامان یې له ځانه سره یوسي او دمقاومت په صورت کښې دکور اوسیدونکي ژوبل او حتی مړه کړي، **موږ په لومړیو ګامونو کښې دکور محرمیت او دحرمت خوندي کیدل غواړو!**

## لسمه غوښتنه) دشخصي ملکیت خوندی کیدل:

په افغانستان کښې دخلکو کورونه، دکرنې ځمکې او نور منقول او غیر منقول جایدادونه دوسلې په زور غصبیږي یا دوسلې په زور قبالې او اسناد تر لاسه کیږي، شخصي ملکیت دټولو قوانینو له مخې خوندی دی، **نو موږ دافغانانو دشخصي ملکیتونو خوندي کیدل غواړو!**



## یوولسمه غوښتنه) دملي ملکیت خوندي کیدل:

روان حالت په افغانستان کښې ټول منقول او غیر منقول ملي ملکیتونه تهدید کړي،دهیواد زیات موزیمونه،کتابخانې، آرشیفونه، دولتي ځمکې، ودانۍ، شرکتونه، موټر او نوري شتمنی یا لوټ شوي او یا دلوټیدو او شخصي ملکیت ګرځیدو په حال کښې دی، **موږ د افغانستان دملي ملکیتونو او شتمنیو خوندي کیدل غوارو!**

## دوولسمه غوښتنه) دتاریخي آثارو خوندي کیدل:

دافغانستان په تاریخی ځایونو کښې نړیوال قاچاقبران دکورنیو غلو په مرسته کیندنې کوي او زموږ تاریخي آثار په غلا بهرنیو هیوادو ته وړل کیږي.

**۱- ددې غیر قانوني او غیر فني کیندنو مخه دې ونیوله شي.**

**۲- ورل شوي آثار دې یونسکو او نورو نړیوالې فرهنګي مؤسسې رانیسي او پهٔ افغانستان کښې دقانوني حکومت دراتلو تر وخته یې دې له ځان سره امانت وساتي.**

## دیارلسمه غوښتنه) دچاپیریال دککړیدلو مخنیوی:

دراز-راز زهري او تباه کوونکو وسلو داستعمال له امله دافغانستان چاپیریال پهٔ وروستی پیمانه ککړ شوی، اغزنه او فصلونه زهرناک شوی او ماحول خراب شوی دی، **افغانان غواړي چې جګړې بندې او ورسره چاپیریال داوسیدو وړ وګرځي.**

## څوارلسمه غوښتنه) دکورونو پهٔ صحي شرایطو جوړېدل:

جګړو پهٔ افغانستان کښې تر نیمایي زیاتې ودانۍ ورانې کړې او بیا ودانیدل یې دصحي اړتیاؤ دمراعاتیدو غوښتنه کوي، **افغانان غواړي چې دکلیو او کورونو پهٔ ودانولو کښې دصحي او بود براېرولو او دکانالیزاسیون او نورو شرایطو پهٔ نظر کښې نیولو سره داستوګنځیو دبیا رغونې پهٔ لاره کښې مرسته وشي.**

## پنځلسمه غوښتنه) روغتیایي خدمتونه رامنځ ته کیدل:

دجګړو ناوړه شرایطو دافغانستان زیات خلك دراز راز روحي او جسمي ناروغیو سره مخامخ کړي او دا ناروغي پهٔ هغو موسمي او سیمه ایزو ناروغیو ورزیاتې شوې چې له پخوا نه پهٔ هیواد کښې موجودې وې، **موږ غواړو چې پهٔ ټول افغانستان کښې لږ تر لږه لومړني روغتیایي خدمات**

چمتو کړای شی.

### شپاړسمه غوښتنه) ښوونه او روزنه برابرول:

په هیواد کښې ددوو لسیزو پر له پسې جګړو دښوونې او روزنې طبیعي لړۍ شلولې او هم کله چیرې دښوونې او روزنی زمینه وه هغه دخارجي هیوادونو او له هغوی سره دتړلو ډلو په خوښه وه چې زموږ ملي غوښتنې پکښې په نظر کښې نه وې، **موږ په خپل هیواد کښې دملي ښوونې او روزنې دلړۍ بیا پیلیدل غواړو.**

### اوولسمه غوښتنه) دنجونو له پاره دزده کړو تهیه کول:

په افغانی ټولنه کښې روانو کړکیچونو دنجونو زده کړو ته درنه ضربه ورکړې، سره له دې چې اسلام دعلم زده کړه په نارینه او ښځه فرض بولي خو یا دامنیتي ملحوظاتو او یا نورو موانعو له امله دنجونو زده کړې تر ژورو تحدید او تهدید لاندې دي، **افغاني نجونو ته دې دبیلې او پراخې زده-کړې لاره هواره شي.**

### اتلسمه غوښتنه) دقوانینو جوړیدل :

افغاني ټولنه چې دجګړو او ناعاقبت اندیشه واکدارانو له امله دځنګل دقانون غیږې ته لویدلې، دژوند دبیلا بیلو برخو دبیا تنظیم له پاره قانوني بهیر ته اړه لری **نو موږ غواړو چې دضرورتونو او اولیتونو په بنا داساسي قانون په شمول دنورو فرعي قوانینو په جوړولو لاس پورې شي او ورو—ورو زموږ ټولنه یو ځل بیا دقانون غیږې ته ولویږي.**

47

## نولسمه غوښتنه) خلکوته دهویت او نمایندګۍ حق:

دګام په ګام حقوقو تر لاسه کولو په لړ کښې افغانان هم دنورو انسانانو غوندې حق لري چې دخپل اجتماعي او سیاسي برخلیك په ټاکلو کښې برخه ولري، په دې برخه کښې ډیر زیات موانع شته، دبیلا بیلو اقوامو، مذاهبو او سیمو دنفوسو دتناسب احصائیې په لاس کښې نشته او خارجي هیوادونه موږ ته دفرضي او غرضي احصائیو په جوړولو بوخت دي، **موږ غواړو چې په خپل وار دملګرو ملتو تر څارنه لاندې په ټول هیواد کښې سرشمیر نه وشي او دقیقې احصائیې تر لاسه شي.** بیا دهمدې احصائیو له مخې دنژادي او مذهبي تناسبونو په نظر کښې نیولو سره دهیواد ټوې اداري ویش وشي او خلك دې ته چمتو شي چې په راتلونکې کښې دخپلې خوښې نماینده ولري.

## شلمه غوښتنه) دبیان دآزادۍ حق:

په اوس وخت کښې په هیواد کښې دننه او له هیواد نه بهر افغانان دبیان دآزادۍ حق نه لري او که چا خپل فکر څرګند کړی په هیواد کښې دننه او بهر بندیان شوي، وژل شوي او یا په مرګ تهدیدیږي، **زموږ په ګام په ګام غوښتنو کښې دبیان دآزادۍ حق باید تضمین شي.**

## یوویشتمه غوښتنه) دآزاد تجارت حق:

په اوس وخت کښې دافغانانو تجارتي فعالیتونه تر سختو تهدیدونو او دلوټمارو تر خوښې لاندې دې، غیر قانوني ولې ملا ماتوونکې پیسې دمحصول په نامه ترې اخلي او یایې ټول مال لوټوي ، بشري قوانینو دا حق هر انسان ته تثبیت کړی **او افغانان هم دآزاد تجارت حق غواړي.**

**دوه ویشتمه غوښتنه) د آزادو فرهنګي فعالیتونو حق:**

ناوړه حالاتو دافغانانو فرهنګي او هنري فعالیتونه مختنق کړي او په دي هکله افغانانو ته دخپلو استعدادونو دتبارز زمینه بنده ده زموږ دګام په ګام حقونو په لړ کښې د آزادو فرهنګي او هنري فعالیتونو غوښتنه هم شامله ده.

**درویشتمه غوښتنه) دشکنجو بندولو حق:**

وسله والې او دهیواد په بیلا بیلو برخو حاکمې ډلې دنیول شویو کسانو په شکنجه کولو، مثله کولو او وژلو هم نه بندیږي او ځینې رواني ناروغان له دې کارونو نه خوند اخلي، شکنجه باید بنده شي او څوك بې له حقه ونه ځورول شي.

**څلیرویشتمه غوښتنه) ددفاع حق:**

له افغانانو نه دنیول کیدو په وخت کښې ددفاع حق اخیستل شوی موږ په خپل وار ددې حق داحیاء غوښتنه کوو او غواړو چې افغانانو ته هم لکه نورو انسانانو غوندې په محکمو کښې ددفاع او سپیناوي حق ورکړل شي. او همدا راز افغانانو ته حق ورکړل شي چې:

۱- دخپل هیواد ملي خاینان او جنایتکاران محاکمې ته راکاږي.

۲- پر خپل هیواد دتیري کوونکو خارجي ځواکونو نه دجنګ تاوان وغواړي.

**پنځه ویشتمه غوښتنه) دګوندونو جوړولو حق:**

په افغانستان کښې تر اوسه ګوندونه په قانوني توګه نه دي تشکیل شوي له همدې امله په هیواد کښې تش په نامه رامنځ ته شوي ګوندونه په

نژاد له کمونستانو سره ملګري شول او د بلې ژبې او نژاد مجاهدين له همژبو او هم نژاده کمونستانو سره ودريدل او يو ځل بيا د ۱۳۷۱ کال د ثور په لومړۍ اوونۍ کښې د اقتدار ناولي جنګونه په افغانستان خصوصاً کابل ښار کښې پيل شول او د افغانستان ملت د نړۍ لويو او ګاونډيو هيوادونو د خپلو ګومارل شويو کسانو او ډلو په وسيله له نويو مصيبتونو او بدبختيو سره مخامخ کړ.

د ژبې او نژاد ، اکثريت او اقليت په دعوو جوړې شوې موضعګيرۍ له دې امله چې په شخصي اغراضو ولاړې وې، ډير ژر وشوړيدې او د هيواد په جګړه کښې ښکيلو، وسله والو او د قدرت مدعي ډلو نوې-نوې وفاداری رامنځ ته کړې، هغه ډله چې پرون له دې بلې ډلې سره دښمنه او له هاغه بلې سره دوسته وه، نن له هغې سره دوسته او له دې سره دښمنه شوه خو د ملت بدبختي ورځ په ورځ زياته شوه ځکه د جګړه مارو ډلو موضعګيرۍ او ملګرۍ بدلې شوې خو د جګړې وضع نه يوازې دا چې بدله نه شوه بلکه لا وحشيانه شوه او دا دې په دې ځلور کلنه موده کښې چې د واک د ساتلو او واک د نيولو مسابقه روانه ده، د افغانستان تر ځلويښت زرو (۴۰۰۰۰) تنو زيات کسان پکښې ووژل شول او زمونږ ټوله مادي او معنوي هستي پکښې برباد شوه.

په دې توګه ټول داخلي ائتلافونه او وسله والې ډ لبندۍ چې ملي ملاتړ ورسره نه ؤ ناکامې شوې او افغانستان عملاً د ملوك الطوايفۍ زرګونو کلونو وړاندې دورې ته ننووت او هم کومې هڅې چې لويو قوتونو او ګاونديو هيوادونو وکړې بې نتيجې پاتې شوې، امريکې د افغانستان په باب د نړيوال کنفرانس په نامه د خپلې خوښې ډلې وروغوښتلې او دافغانستان په ډلو کښې يې د سکني او نا سکه کرښه راکښله او ايران د امريکې په مقابل کښې همداسې اقدام وکړ او هغوی بيا د خپلې خوښې کسان وروغوښتل چې دې کنفرانسونو هم نه يوازې دا چې کومه ګټه ونه کړه بلکه تشنج يې لا زيات کړ او په افغانستان کښې يې د وسله والو ډلو د نفاق اور ته نور هم لمن ووهله.

نو اوس د افغانستان په جګړه کښې ښکيلو ځواکونو چې د اقتدار د ناولو جګړو په وسيله يې د خپلو ټولو ادعا ګانو تقدس له لاسه وتلی، بايد دا درك کړې وي چې د افغانستان پر مسلمان او قهرمان ملت د زور حکومت ځوك نه شي کولای، د افغانستان په مؤمن او يو موټي ملت کښې نژادي، ژبني، سيمه ييز او مذهبی بيلتونونه را پيدا کول ځای نه لري او د راپيدا کوونکو تر مختورۍ پرته يې بله نتيجه نه راوزي.

خپل خپل وار له پردو سره ترلي راغلي او يا دپردو غيرېږ ته لويدلي او دافغانستان ټولې رواني بدبختۍ همدې له نورو سره ترلو او دنورو په ګټو ولاړو حزبونو رامنځ ته کړې نو **افغانان بايد قانوني حق ولري چې دخپلو ملي غوښتنو په رڼا کښې ګوندونه جوړ کړي او په افغانستان کښې دګوندونو قانوني فعاليت پيل شي.**

## شپږ ويشتمه غوښتنه) دشورئ درلودلو حق:

له افغانانو نه ددوی په سرنوشت ټاکلو کښې دنماينده درلودلو حق اخيستل شوی دوی ته هم بايد دنورو انسانانو غوندې حق ورکړل شي چې دزمينې له مساعديدلو سره خپل نمايندګان وټاکي او دهيواد مرکزي شورئ ته يې وليږي.

## اووه ويشتمه غوښتنه) دانتخابي حکومت حق:

ديو شمير نورو ګټو حقوقو تر تضمين وروسته **بايد افغانانو ته حق ورکړل شي چې له خپلو نمايندګانو نه جوړ انتخابي حکومت رامنځ ته کړي** او په دې توګه دغير ملي حکومتونو او له بهر نه دصادرو شويو حکومتونو مخه ونيوله شي.

## اته ويشتمه غوښتنه) دکار حق:

په اوس وخت کښې په وسله والو ډلو کښې دځوانانو دځای پر ځای کيدلو يو علت هم بيکاري ده، **افغانانو ته بايد له استعداد سره سم دکار کولو زمينه مساعده شي** او دا پياوړې متې چې دکار سرشار استعداد لري په بيلا بيلو ساحو کښې دهيواد دبيا ودانۍ له پاره په کار ولويږي.
همدا راز دې دهيواد يتيمانو او معلولينو ته دکارونو په برخه کښې اولويت او ددوی له توان سره سم کارونه تهيه کړای شي.

**نهویشتمه غوښتنه) دتښتیدلو مغزونو راستنیدل:**

روانو ورانوونکو حالاتو دافغانستان بې شمیره مغزونه دنړۍ دهیوادونو سرګردان کړل او یا هم په تیرو دوو لسیزو کښې ځینې افغاني ځوانان په نورو هیوادونو کښې وروزل شول، **دنړۍ ټول هیوادونه باید داسې تشویقي زمینې مساعدې کړي چې دا علمي او ذکار مغزونه بیرته هیواد ته راستانهٔ او په کار بوخت شي.**

**دیرشمه غوښتنه) دلاسوهنو بندول:**

دافغانستان په چارو کښې ډیر بهرني او ورسره ترلي کورني لاسونه دعجیبو او غریبو منطقو نو په درلولو سره دافغانانو دژوند په ټولو یادو شویو برخو کښې په مداخله او لاسوهنه بوخت دي، **افغانان غواړي چې هیڅ فرد ، ډله یا دولت باید ددې حق ونهٔ لري چې دافغانستان دملي ګټو، ملي خپلواکۍ او ملي وحدت خلاف لاسوهنې وکړي، لمسونې وکړي اولاس غزونې وکړي!**

٭ ٭ ٭

## پایلیکونه:


(۱) کهزاد، اروابناد استاد احمد علي: «افغانستان در پرتو تاریخ» ۲۲ مخ، دکتاب چاپولو مؤسسه، ۱۳٤٦، کابل.

(۲) دويدي سرودونو دپېژندګلوۍله پاره وګورئ: «ګزیده‌ء ریګویدا» دډاکتر محمد رضا جلالي نائیني تحقیق او ژباړه، دنقره چاپ، ۱۳٦٧، تهران.

(۳) ددیس کلیمه دپښتو په پردیس (مسافر) کښې اوس هم ژوندۍ ده چې د «پردي دیس» نه جوړه ده.

(٤) دتفصیل له پاره وګورئ کهزاد : «تاریخ افغانستان» لومړی ټوک ۱۱۵-۱۱۹ مخونه، انجمن تاریخ، ۱۳۲۰ کال، کابل.

(٥) همدا پورتنی اثر، ۱۲۵-۱۲٦ مخونه.

(٦) دهمدې اثر ۱۲٦-۱۳۰ مخونه.

(٧) دهمدې کتاب ۱۱۹ مخ.

(٨) ریشیان دآریایي ټولنې شاعران وو چې خلکو ته به یې پندونه او لارښوونې دشعر په بڼه رسولې او بیا به خوله په خوله لیږدیدلې.

(٩) دزردشت او دهغه دتعلیماتو په باب وګورئ: «اوستا» دهاشم رضي لیك او تحقیق، دفروهر چاپ، ۱۳٦٣، تهران، «ګاتها» دموبد فیروز آذر ګشسپ ترجمه او تفسیر دوه ټوکه، ۱۳۵۱، تهران.

(۱۰) دتفصیل له پاره وګورئ: رفیع، حبیب الله: «جرګې او دافغاني جرګو اجتماعي او رواني ارزښتونه» دآزاد افغانستان دلیکوالو ټولنه، ۱۳٧٤ کال، پېښور.

(۱۱) ددې کودونو دتفصیل له پاره وګورئ: پژواك، استاد عبدالرحمن «تعاملات حقوقیه و جزائیه‌ء ملی» سالنامه‌ء کابل، ۱۳۱۸ کال، ۳٤۱-۳۵۸ مخونه، پښتو ټولنه، کابل.

(۱۲) قرآن کریم، دالمائده سورة، ۳۲ آیة.

(۱۳) قرآنکریم، دالنساء سورة، ۹۳ آیة.
(١٤) قرآن کریم، دالنساء سورة، لومړی آیة.
(١٥) قرآن کریم، دالحجرات سورة، ۱۳ آیة.
(١٦) قرآن کریم، دالروم سورة، ۲۲ آیة.
(۱۷) قرآن کریم، دالاسراء سورة، ۲۲ آیة.
(۱۸)قرآن کریم، دالزمر سورة، ٦ آیة.
(۱۹) قرآن کریم، دالبقرة سورة، ۱۸۷ آیة.
(۲۰) قرآن کریم، دالبقرة سورة، ۳۱ آیة.
(۲۱) قرآن کریم، دالتوبة سورة، ۳۳ آیة.
(۲۲) قرآن کریم، دالقلم سورة، لومړی آیة.
(۲۳) قرآن کریم، دالعلق سورة، ٤ آیت.
(٢٤) دابن ماجه په روایت حدیث.
(٢٥) قرآن کریم، دالنور سورة، ۲۸ آیة.
(٢٦) قرآن کریم، دالحجرات سورة، ٦ آیة.
(۲۷) پهٔ نسایی او ترمذی کښې راغلی حدیث.
(۲۸) قرآن کریم، دالشوری سورة، ۳۸ آیة.
(۲۹) قرآن کریم، دآل عمران سورة، ١٥٩ آیة.

(۳۰) قرآن کریم، دالبقرة سورة، ۱۵۱ آیة.
(۳۱) قرآ کریم، دابراهیم سورة، ٤ آیة.
(۳۲) قرآن کریم، دالنساء سورة، ۵۹ آیة.
(۳۳) قرآن کریم، دالبقرة سورة، ۲۵٦ آیة.
(۳٤) قرآن کریم، دالنساء سورة، ۹۷ آیة.
(۳۵) اساسي نظامنامه دافغانستان، ۵-۹ مخونه، لومړی چاپ، ۱۳۰۲ کال، کابل.
(۳٦) اصول اساسی دولت علیهء افغانستان، د ۱۳۱۰ کال دلړم د۹ نیټې تصویب، له ۹ تر ۲٦ مادی پورې.
(۳۷) دافغانستان اساسي قانون، له ۲۵ تر ٤۰ مادی پورې،۱۳٦۳ کال، کابل.
(۳۸) دبشر دحقوقو داعلامیې دبشپړ متن له پاره وګورئ: تعاون، ۳ کال، ٤ ګڼه، ۳۸-٤۲ مخونه، ۱۳۷٤، عقرب، پیښور.

دوی باید دخدای پهٔ خاطر، د قرآن پهٔ خاطر او د با ایمانه ملت د قربانیو او قهرمانیو پهٔ خاطر له وسله والو سیالیو نه تیر شي او د في سبیل-الله جهاد د دعوې د تحقق له پاره د قدرت جنګونه پریږدي او خپل قهرمان او اتل ملت ته د تنفس او د خپل برخلیك د ټاکلو موقع ورکړي او پریږدي چې هغوی د افغانستان اداره د قانوني بهیر غیږې ته واچوي او د وران شوي افغانستان د بیا ودانولو کار پیل شي.

له بلې خوا د افغانستان ګاونډیان او د افغانستان پهٔ پېښنو کښې ککړ ټول هیوادونه باید پهٔ افغانستان کښې د خپلو لاسپو څو حکومتونو د جوړولو فکر له سره وباسي او ددې ټکو پهٔ نظر کښې نیولو سره چې د افغانستان مسلمان او پهٔ آزادی مین ملت پهٔ خپل هیواد کښې د هیچا ګوډاګی حکومت نهٔ مني، پهٔ ګډه د یوهٔ داسې حکومت پهٔ رامنځ ته کولو کښې مرسته وکړي چې د افغانستان ملي وحدت تأمین کړي، د افغانستان ملي خپلواکي وساتي او د افغانستان ملي ګټې پهٔ نظر کښې ولري. داسې حکومت به د آرامی پهٔ راوستلو او د یوهٔ قانوني بنیاد پهٔ درلودلو سره له ټولو ګاونډیانو سره د ورورۍ اړیکې ټینګوي او د دوه اړخیزو ګټو پهٔ نظر کښې نیولو سره به له دوی سره راکړې ورکړې او راشې درشې کوي.

ددې ټکو پهٔ نظر کښې نیولو سره د افغانستان د شخړې د بیړني حل او د هیواد د قانوني بهیر غیږې ته د لویدو له پاره دا لاندې پر له پسې پړاوونه باید ګام پهٔ ګام عملي شي:

## لومړی ګام

# نړیوال کنفرانس
# او
# د اغیزمنو کسانو اضطراري جرګه

مورږ وینو چې د افغانستان ستونځه دوه اړخونه لري چې یو خارجي او بل داخلي اړخ دی چې داخلي اړخ هم له خارجي اړخ سره تړلی او دواړه یو ځلي باید حل شي نو ددې دوه اړخیزو ستونځو د حل له پاره باید په یوه وخت کښې خو سره جلا یونړیوال کنفرانس او یوه لویه جرګه دایر کړای شي.

د ملکرو ملتونو تر اداري لاندې جوړ شوي نړیوال کنفرانس کښې به د نړۍ لوی هیوادونه او د افغانستان په پیښو کښې د خیل هیوادونه دي نتیجې رسیږي چې د افغانستان روانه وضع ددوی یوه په ګټه هم نه ده او په همدې بنا به په ورسره تړلو ډلو باندې وسلې او پیسې بندوي او یوه حل ته به یې هڅوي. ٦

له بلې خوا به وسله وال ځواکونه د جګړې پۀ بندولو سره ملت ته موقع ورکوي چې د هیواد پۀ یوه سوله ناکه سیمه کښې د اغیزمنو کسانو یوه اضطراري جرګه راوبولي. دجرګې پۀ ترکیب کښې بۀ د وسله والو تنظیمونو مشران، د هیواد لوی او ځواکمن قوماندانان، د ولایاتو او اولسوالیو اغیزمن سپین ږیري، مخور، عالمان او روشنفکران شامل وي چې شمیره به یې له ۵۰۰ تر ۶۰۰ تنو پورې کیږي. ددې کسانو پۀ خوښولو کښې به تر هر څۀ وړاندې ددوی اغیزمنتوب پۀ نظر کښې وي او دې ټکي ته بۀ کتل کیږي چې له نظامي، اولسي او فکري نظره ددۀ پریکړه څومره درنښت درلودلای شي.

د نړیوال کنفرانس او د لویې جرګې د پریکړو د هم آهنګۍ له پاره بۀ د لویې جرګې یو هیأت پۀ نړیوال کنفرانس کښې د ناظر پۀ توګه او د نړیوال کنفرانس یو هیأت بۀ پۀ لویه جرګه کښې د ناظر پۀ توګه برخه اخلي او ددې نړیوال کنفرانس او دې لویې جرګې د پریکړو په نتیجه کښې بۀ د افغانستان له پاره ملي پوځ جوړیږي او په هیواد کښې بۀ امنیت ټینګوي.

د سولې پۀ دې پروسه کښې بۀ هغه هیوادونه چې د افغانستان پۀ جګړه کښې یې سخاوتمندانه پیسې ښندلې اخلاصمندانه برخه اخلي او له دې سره بۀ پۀ هیواد کښې یو مؤقت حکومت رامنځ ته کیږي او د افغانستان د سیاسي ادارې د قانوني کولو پۀ لور به یو پر بل پسې نور ګامونه اوچتوي او پۀ دې توګه به افغانستان له دې ناوړه حالت نه راوزي.

دوهم ګام

# له مسلکي کسانو نه جوړ مؤقت حکومت

د اضطراري جرګې په خوسبه جوړ شوی موقت حکومت به یو بې طرفه حکومت وي چې له هغو مجربو، روزل شویو اومسلکي افغانانو څخه به جوړ وي چې همدا اوس د نړۍ په بلا بیلو هیوادونو کښې خواره دي او یا په هیواد کښې د ننه د کس مپرسۍ ژوند تیروي. دا هغه کسان دی چې په ډیره تنده او تلوسه د خپل هیواد د حالاتو د ښه کیدلو او د افغانستان د ملت له پاره د آزاد تنفس ایستلو د فرصت انتظار باسي او هیله لري چې د څه کم دوه ملیونه شهیدانو تر قربانۍ وروسته ګران هیواد ته د خدمت کولو او د وران هیواد د ابادولو په لاره کښې کار او قربانۍ ته راوړاندې شي او د بیا رغونې په جهاد کښې برخه واخلي. دوی به زمنه کوي چې د مؤقتي دورې تر ختمیدو وروسته به نه په ډله ایزاونه په انفرادي توګه د قدرت له پاره کاندیدوي او لکه څنګه چې مجاهدینو د آزادۍ له پاره د سر قرباني ورکړې دوی به د آرامۍ له پاره سیاسي قرباني ورکوي. ۸

د داسې حکومت په منځ ته راتلو به له یوې خوا د تنظیمونو تر منځ د اقتدار لیونۍ جګړه پای ته ورسیږي او له بلې خوا به تنظیمونه له خپل مسلمان ملت سره خپله هغه ژمنه چې پنځلس کاله یې د «فی سبیل الله جهاد» په الفاظو کوله ، ترسره کړي.

د بې طرفه حکومت په راتلو سره به چې د ملت، تنظیمونو او نړیوالو ملاتړ به لري، په هیواد کښې د قانوني بهیر د په لار اچولو له پاره زمینه برابره شي او بیا به په دې لاره کښې د څو نورو پر له پسې او منظمو ګامونو په اخیستلو سره داسې وخت هم راشي چې جهادي تنظیمونه به د وسلې پر ځای له منطق سره اولس ته ورځي او د قانوني انتخاباتو له لارې به مشروع واک ته رسیږي.

په دې توګه د بې طرفه حکومت جوړیدل په هیواد کښې د قانوني ادارې د جوړیدو په لور یو مهم ګام دی چې نور منظم ګامونه به یې د تکامل په لور بیایي.

# ډاډمن امنیت



حقیقت دا دی چې په هیواد کښې یو مرکزي او ۲۹ ولایتي حکومتونه نه دي، بلکه په هیواد کښې د وسله والو گروپونو په شمیر حکومتونه دي چې هر یو وسله وال گروپ هر څنګه یې چې زړه غواړي په همغه ډول له خلکو سره رویه کوي او د خپلو وسله والو ادارو د چلولو له پاره د خلکو د مالونو په لوټلو، جریمه کولو، محصول اخیستلو، انسان تښتولو او نورورداسې ناوړه او ناروا کارونو بوخت دي چې اولس یې پرېږدي ته راوستلی او ملت یې د قانون له حمایت او ملاتړ نه محروم کړې دی. د یادولو وړ خبره دا ده چې د پخواني کمونست حکومت عسکر، خاد او حتی ګوندي فعالین په دې ګډوډیو کښې بنسټیز لاس لري، منصوبې او پلانونه جوړوي او د ځینې تنظیمونو وسله والې ډلې یې یا په نژادي او سیمه ییزو بنیادونو له ځان سره ملې کړې او یا په بې خبرې کښې ددوی په ګټه استعمالیږي.

ددې ګډوډۍ دله منځه وړلو له پاره به بې طرفه عبوری حکومت چې د تنظیمونو، ملت او نړیوال ملاتړ به لري، د افغانستان د پخوانیو روزل شویو او مجربو عسکري او پولیسي منصبدارانو په وسیله د ملي دفاع او داخلي امنیت وزارتونه جوړوي چې د پخوانیو کمونیستی منصبدارانو په شمول به ټول وسله وال گروپونه وسله ورته سپاري او بیا به نوموړي وزارتونه په ټول هیواد کښې د یوه ډاډمن امنیت دټینګولو له پاره کار کوي.

د ډاډمن امنیت په راتللو سره به له یوې خوا د هیواد ټول هغه مهاجرین چې په ګاونډیو هیوادونو کښې په خپل هیواد کښې د ډاډمن امنیت د

د افغانستان عاجل، بې طرفه موقت حکومت

# ۱ دوې طرحې ۲



د افغانستان د بشر د حقوقو اعلامیه

